| | | |
|---|---|---|
| <br>د متن لوستل | **تر لوستلو مخکې** (د لومړۍ کيسې بيا تکرار)<br>•شاگردانو ته و واياست چې تصوير ته دې وگوري او عنوان يې ولولي. پوښتنه ورځخه وکړئ چې د پرونۍ کيسې/متن څخه يې څه په ياد دي که نه؟<br>**د لوستلو پر مهال**<br>•شاگردان هڅه کوي چې کيسه /متن په خپله ولولي.<br>•ښوونکی ورته په نمونه يي توگه کيسه / متن لولي.<br>•ټول کيسه په گډه لولي.<br>•شاگردان کيسه جوړه جوړه لولي.<br>•شاگردان کيسه ځانله وايي.<br>•شاگردانو ته وواياست چې اوس ستاسو وار دی چې له خپل ذهن نه يوه کيسه وليکئ.<br>•شاگردانو ته وواياست چې په کتاب کې دوو تصويرونو ته وگوري. ورځخه پوښتنه وکړئ چې د دې تصويرونو کيسې يې په ياد دي؟<br>• ۲ يا ۳ شاگردانو ته اجازه ورکړئ چې څه يې په ياد وي، ويې وايي.<br>•شاگردانو ته فرصت ورکړئ چې خپل ملگري ته ووايي چې د کيسې کومه برخه يې خوښه شوې ده؟ بيا ور څخه پوښتنه وکړئ چې که چېرې هغوی په خپله د کيسې يو کرکټر وای، څه به يې کړي وو؟ دوو شاگردانو ته اجازه ورکړئ چې خپلې کيسې په څلورو جملو کې پر تخته وليکي او نورو ته يې ووايي. | ۱۰ |
| <br>ابتکاري ليکل | •شاگردانو ته و واياست چې اوس به هغوی د يوې کيسې په اړه يو څه وليکي.<br>•شاگردانو ته و واياست چې د خپلې کيسې لپاره دې رسم وکاږي او په اړه يې څلور جملې وليکي.<br>• کله چې شاگردان دا کار کوي، په ټولگي کې وگرځئ او وگورئ چې څنگه رسم کاږي او څنگه ليکل کوي. د دوی د کيسو په اړه ورنه پوښتنه وکړئ او که چا مرستې ته اړتيا لرله، مرسته ورسره وکړئ.<br>•څو دقيقې وروسته له يو څو شاگردانو وغواړئ چې خپله کيسه ټولگي ته ووايي. | ۱۵ |
| <br>ارزونه/ کورنۍ دنده | • له شاگردانو سره توري او غږ تکرار کړئ.<br>• کورنۍ دنده: شاگردان دې يوه بله کيسه په کور کې وليکي. | ۵ |

| شپږم لوست | د تدریس پړاوونه | دقیقې |
| --- | --- | --- |
| **د پیل برخه** | • وګورئ چې ټولو شاګردانو خپل کتابونه پرانیستي وي.<br>• د تېرې ورځې درس په لنډه توګه تکرار کړئ. | ۵ |
| <br>**غږپېژندل** | **د غږونو اورېدل**<br>• د تصویر په اړه له شاګردانو سره خبرې وکړئ.<br>• کلمه او لومړی غږ یې بیان کړئ.<br>• شاګردان له تاسو سره د کلمې لومړی غږ تکراروي.<br>• شاګردان لومړی غږ له ځان سره تکراروي.<br>• شاګردان دا معلوموي چې نورې کلمې هم په همدې نوي غږ سره پیل شوې دي، که نه؟<br>• همدا فعالیت د دویم او دریم تصویر لپاره هم ترسره کړئ.<br>• همدا پړاوونه د نورو توروو لپاره هم تکرار کړئ. | ۵ |
| <br>**د تورو او کلیمو لوستل او لیکل**<br> | **د تورو لوستل او لیکل:**<br>•توری پر تخته ولیکئ.<br>•شاګردانو ته و وایاست چې دغه توری / ـــــــــ/ غږ ښیي.<br>•پر توري ګوته کېږدئ او غږ یې له شاګردانو سره یوځای تلفظ کړئ.<br>•پر توري ګوته کېږدئ او پرېږدئ چې شاګردان یې غږ په خپله ووایي.<br>•شاګردانو ته وښیئ چې دغه توری په هوا کې څنګه لیکل کېږي، بیا دا کار له هغوی سره په ګډه تر سره کړئ.<br>•شاګردانو ته ووایئ چې په خپل کتاب کې دغه توری په ګوته وځاري.<br>•شاګردانو ته و وایاست چې دا توری دې پنځه ځلې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>• همدا تمرین د کلمې په منځ او آخر کې د راغلو تورو لپاره هم وکړئ.<br>• همدا تمرین د نورو تورو لپاره هم وکړئ.<br><br>**د کلمو لوستل**<br><br>• د هجا او ترکیب د برخې د سر دوې کلمې پر تخته ولیکئ.<br>• شاګردانو ته وښیئ چې څنګه کلمې ترکیب او هجا کېږي؟<br>وروسته یې بیا له هغوی سره په ګډه کلمې هجا کړئ او پرېږدئ چې هغوی په خپله هم دا کار وکړي.<br>• شاګردانو ته و وایاست چې جوړه جوړه دې د ترکیب او هجاوو د تمرین کلمې په خپلو کتابونو کې ولولي.<br>•په ټولګي کې وګرځئ او له هغو شاګردانو سره مرسته وکړئ چې ستونزې لري. | ۵ |

| | | |
|---|---|---|
| <br>**د متن لوستل** | **له لوستلو مخکې** ( د دویمې کیسې بیا لوستل)<br>•شاګردانو ته و وایاست چې د لوستلو د کیسې/متن تصویرونو ته دې وګوري او عنوان یې ولولي. ورځخه پوښتنه وکړئ چې له پروني درس څخه یې څه په یاد دي؟<br>**- د لوستلو پر مهال**<br>• شاګردان کوښښ کوي چې کیسه/متن په خپله ولولي.<br>• ښوونکی کیسه/متن په نمونه یې شکل شاګردانو ته لولي.<br>• بیا ښوونکی او شاګردان په ګډه متن لولي.<br>• هر شاګرد متن له یوه بل ټولګیوال سره لولي.<br>• هر شاګرد متن ځانته لولي. | ۱۰ |
| <br>**املا** | • شاګردانو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې ولیکي.<br>• شاګردانو ته و وایاست چې کلمې تکرار کړي او هجاوې د لاسونو په حرکتونو سره جلا کړي: ـــــ-ـــــ-ـــــ. دا کلمه ـــــ هجاوې لري. شاګردانو ته ووایئ چې د کلمې هرې هجا ته ځیر شي او د هجا توري ولیکي. ورته و وایاست چې کلمې دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.<br>• دریم پړاو د ــ ـــــــ، ـــــــ ، ـــــــ کلمو لپاره تکرار کړئ.<br>• کله چې شاګردان لیکل کوي، په ټولګي کې وګرځئ. له هغه وروسته چې شاګردانو کلمې ولیکلې. کلمې پر تخته ولیکئ او له شاګردانو څخه پوښتنه وکړئ چې په کتابچو کې یې کومې کلمې لیکلې وې؟<br>• بیا د شاګردانو کتابچې وګورئ چې چا کلمې سمې لیکلې دي او څوک لا زیاتې مرستې ته اړتیا لري. په بل درس کې بیا په هماغه شاګردانو زیات پام وکړئ چې زیاتې مرستې ته اړتیا لري. | ۱۵ |
| <br>**ارزونه/ کورنۍ دنده** | • له شاګردانو سره توری او غږ تکرار کړئ.<br>• کورنۍ دنده: شاګردان دې په کور کې یو ځل بیا د املا کلمې او جملې ولیکي. | ۵ |
| <br>حسن خط | **د حسن خط فعالیت:**<br>ښوونکی دې زده کوونکو ته د هرې ورځې له لارښود سره سم د حسن خط په ساعت کې لارښوونه وکړي چې په پوره دقت سره اړونده تورو ته وګوري او له کړکي قلم سره یې د کرسي خط پر مخ ښایسته لیکل تمرین کړي. | ٤٥ |

**د ځانګړې زده کړې اړتیاوې**

**د تعلیمي ضرورتونو درک کول**

د لوستلو او لیکلو د زده کولو لپاره مختلفو مهارتونو ته اړتیا ده. که کوم ماشوم لیک لوست سم نه زده کوي، معنا یې دا نه ده چې هغه نه غواړي دا مهارتونه زده کړي، بلکې دوی به ځانګړې ښوونیزې اړتیاوې ولري. کېدای شي دوی فیزیکي یا سلوکي ستونزې ولري. مثلاً په لیدلو، اورېدلو یا خوځېدلو کې به ناتوانه وي او یا به په دې کې ستونزه ولري چې له نورو سره خپلې اړیکې ټینګې کړي، څوک خپل ملګري کړي او کورنۍ دنده ورسره یوځای ترسره کړي.

**د هغو شاګردانو معلومول چې ځانګړې ښوونيزې اړتياوې لري:**

هغه شاګردان چې په درسونو کې پخ ګډې کېږي او يا هماغه يو ټولګی بيا له سره وايي (ناکامېږي)، معمولاً اضافي مرستې ته اړتيا لري. کله چې د شاګردانو د ارزونې فورمې ډکېږي، دا معلومېږي چې کوم شاګردان د مهارتونو په خپلولو راوړلو کې پاتې راځي. معلم بايد دا معلومه کړي چې څه شی شاګرد نه پرېږدي چې دا مهارتونه ترلاسه کړي.

- شاګرد کومې مهمې ستونزې لري؟
- شاګرد پر تختې او کتاب ليکل شوي شيان وينې؟
- د معلم غږ اورېدلی شي؟

که د کوم شاګرد لاس يا پښه نه وي، يا د سترګو يا د غوږونو ستونزه ولري، معنا يې دا نه ده چې ګواکې د نورو شاګردانو په نسبت ناتوانه دي، بلکې معنا يې دا ده چې معلم بايد ورسره مرسته وکړي چې له درسي کتاب او نورو درسي موادو څخه د نورو په شان استفاده وکړای شي.

**له داسې شاګردانو سره مرستې**

- هغه شاګردان له پامه مه غورځوئ چې کمزوري ښکاري. دا معلومه کړئ چې هغوی څه کولای شي.
- که کوم شاګرد په ليدلو يا اورېدلو کې ستونزه لري، مخکې چوکيو ته يې راولئ چې درنږدې وي.
- له شاګردانو سره په ساده ژبه خبرې وکړئ. په نرمه، آرامه، مهربانه او واضحه غاړه ورسره وغږېږئ.
- د سيمې په لهجه ورسره وغږېږئ چې په لارښوونو سم پوه شي.
- دا تمه به نه لرئ چې ټول شاګردان دې په يوه اندازه مخته لاړ شي. ځينې شاګردان که يوه کلمه هم وليکي، دا يې بريا ګڼل کېږي.
- هغوی د تکړه شاګردانو څنګ ته کېنوئ چې د صفحې په موندلو او په ګوته د کلماتو ښودلو کې ورسره مرسته وکړي، يا ورته ووايي چې څه بايد وکړي.
- هغوی ته د فکر کولو او د درسي فعاليت د بشپړولو لپاره اضافي وخت ورکړئ.
- څومره چې ممکن وي، اساسات ورسره بيا بيا تکرار کړئ.

**له يادو شاګردانو سره د تدريس پر مهال مرستې**

په ټولګي کې ښه تدريس به اړمنو شاګردانو ته ګټه ورسوي.

- درسي مواد (فلش کارتونه، واقعي شيان، عکسونه، موډلونه او لوی رسمونه) وکاروئ.
- د کليدي کلمو رسمونه پر تخته يا چارټ رسم کړئ.
- د نويو کلمو او نويو غږونو د ښه تدريس لپاره له هم قافيې کلمو او لوبو څخه کار واخلئ.

**د تدريس عيارولو ته اړتيا ده:**

- په ټولګي کې داسې فضا جوړه کړئ چې هر شاګرد وغواړي په فعاليتونو کې برخه واخلي او دا وېره يې په زړه کې نه وي چې که غلط ځواب ورکړي، څوک به ورپورې وخاندي.
- داسې پوښتنې وکړئ چې معلومه شي شاګرد په درس پوه شوی دی که يوازې د نورو په تقليد سره ځواب وايي.
- تکړه شاګرد وهڅوئ چې کله يې خپل کار خلاص کړ، له بل ملګري سره هم مرسته وکړي.
- يو تکړه شاګرد وهڅوئ چې د ټولګيوالو له يوې وړې ډلې سره د درس په بيا لوستلو يا د نورو فعاليتونو په ترسره کولو کې مرسته وکړي.

د لوستلو همدا طريقه او اصول د لوستلو په نورو برخو لکه انتقالي ميتود (زه يې ترسره کوم، موږ يې ترسره کوو، تاسې يې ترسره کوئ) بل چا ته لوستل، له بل چا سره لوستل او په يوازې ځان لوستلو کې وکارول شي.

په ابتدايي دوره کې بايد د شاګردانو دلچسپي د هغو شيانو په يادولو سره زياته کړو چې دوی له پخوا پرې پوهېږي.

**لوستل**

د زده کوونکو د کتاب له کيسو او متنونو څخه استفاده وکړئ او د تصويرونو په اړه يې پوښتنې وکړئ. که شاګرد کومه کلمه لوستلی شي، پرېږدئ چې په لوړ آواز يې ولولي. وګورئ چې شاګردانو کتابونه سم نيولي دي که نه او پوه شوي دي چې متنونه له ښي څخه چپ لوري ته لوستل کېږي؟ شاګردان وپوهوئ چې توري او کلمې معناګانې لري او توري د غږونو رسمونه دي.له شاګردانو سره مرسته وکړئ چې کله متن لوستل کېږي، دوی ګوته پرې تېره کړي.

## ليکل

وګورئ چې شاګردانو پنسل سم نيولی دی او توري يې سم ليکلي دي که نه. د يوه يا دوو تنو انشاء ته ځير شئ. که دغه هدفونه پوره شوي وو، بيا مخته تلی شئ.

## غوږ نيول او خبرې کول

هغه شاګردان چې ځانګړې ښوونيزې اړتياوې لري، ممکن د ټولګي مخې ته د غږېدلو زړه ونه لري. دوی ته لاره هواره کړئ چې زړور شي. لومړی دې له خپل څنګ لوري زده کوونکي سره خبرې وکړي، بيا د ټولګيوالو وړې ډلې ته خبرې وکړي او زده کوونکي يو د بل خبرو ته غوږ ونيسي. کله چې ورڅخه پوښتنه کوئ، کافي وخت ورته ورکړئ چې ځواب ووايي. دا تمه به نه لرئ چې ټول متن/ ټوله کيسه درته ووايي. په ساده ځوابونو يې هم وستايئ.

## اصلاحي فعاليتونه

- هر شاګرد له يوه بل شاګرد سره ملګری کړئ چې ورسره مرسته وکړي او د کتاب پيل، د صفحو شمېرې، کليدي تصوير، او کلمې ورته وښيي.
- ساده کتابونه ورته انتخاب کړئ چې د کتاب استفاده ورته اسانه شي.
- پر تورو او غږونو تمرکز وکړئ. ورته توضيح يې کړئ چې دا توری د دې غږ ليکلی شکل دی. توري په هوا کې رسم کړئ او ويې ليکئ. (دا تمرين د شاګرد له نوم څخه پيل کړئ.)
- داسې تمرين ترسره کړئ چې لومړني توري، هجاوې او غږونه پکې استعمال شي.
- د ليکلو د لومړنيو مهارتونو تمرين ته دوام ورکړئ (يعنی په هوا کې رسمول، پر ځمکه ليکل، پر تورو درو ليکل، په لاس د تورو ليکل).
- نوې کلمې د تصويرونو په چارټونو کې وښياست.
- ساده کلمې په فلش کارټونو کې وروښياست د کارټ پر يو مخ دې تصوير وي او پر بل مخ يې کلمه.
- له شاګردانو څخه وغواړئ چې د خپلو ورځنيو چارو په اړه خبرې وکړي: مثلاً له خوبه پاڅېدل، ښوونځي ته راتلل.
- په لوړ غږ آشنا او هم قافيه کلمې بيا بيا تکرار کړئ.
- په ټولګي کې سالمه رواني فضا رامنځته کړئ.

## د لوستلو او اورېدلو متنونه

په کتابونو کې دوه ډوله متنونه دي؛ د لوستلو متنونه او د اورېدلو متنونه، چې هر يو يې خپلې ځانګړتياوې او هدف لري. د اورېدلو متنونه د معلم لخوا شاګردانو ته لوستل کېږي او زياتره دا ډول متنونه د لوستلو د متنونو په پرتله اوږده دي. د دا رنګه متنونو هدف دا دی چې د شاګردانو د غوږ نيولو مهارت وروزي، نوې کلمې ورزده کړي او نور هغه مهارتونه يې ورزوي چې وروسته بيا د متنونو په لوستلو کې د دوی په کار بېږي. د لوستلو متنونه نسبتاً لنډ دي. دا به د شاګردانو د لوستلو مهارت وروزي، د کلماتو زېرمه به يې زياته کړي او له متن څخه د مفهوم اخيستلو مهارت ته به يې وده ورکړي.

په دې متنونو کې د تورو استعمال، په جمله کې د کلمو شمېر او په يوه متن کې د کلمو او جملو تعداد ته پام شوی دی. په لاندې جدول کې د لومړي او دويم ټولګي د بېلا بېلو اونيو لپاره معيارونه ښودل شوي دي. دا جدول راښيي چې موږ ګام په ګام پر مخ تللي يو چې د شاګردانو د لوستلو مهارت ته وده ورکړو.

| اونۍ | لومړی ټولګی | دويم ټولګی |
|---|---|---|
| ۱ – ۵ اونۍ | تصويري کيسې له ۴ انځورونو سره | ۷ – ۱۰ جملې<br>۲ – ٦ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۴۲ |
| ٦ – ۱۰ اونۍ | ۲ – ۴ جملې<br>۲ – ۴ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۱۰ | ۸ – ۱۱ جملې<br>۲ – ۷ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۵۵ |
| ۱۱ – ۱۵ اونۍ | ۳ – ٦ جملې<br>۲ – ۴ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۱۸ | ۹ – ۱۲ جملې<br>۲ – ۸ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ٦٦ |

| ۱۶ – ۲۰ اونۍ | ۵ – ۸ جملې<br>۲ – ۵ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۳۰ | ۱۰ – ۱۳ جملې<br>۲ – ۹ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۷۹ |
|---|---|---|
| ۲۰ – ۲۸ اونۍ | ۷ – ۱۰ جملې<br>۲ – ٦ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۴۲ | ۱۱ – ۱۴ جملې<br>۲ -۱۰ کلمې په هره جمله کې<br>د کلمو اوسط تعداد: ۹۲ |

په دوهم ټولګي کې د اوربدلو کيسې د اونۍ په لومړۍ ورځ د معلم له خوا لوستل کېږي. د اونيو په نورو ورځو کې شاګردان د لوستلو کوچنۍ متنونه لولي او يا يې تکراروي. په دويم ټولګي کې، د اورېدلو کيسې د اونۍ په دويمه او څلورمه ورځ لوستل کېږي. د دويم ټولګي کيسې د لومړي ټولګي د کيسو په پرتله يو څه اوږدې دي. شاګردان بايد د کيسې تېره برخه رايادو کړي چې د اونۍ په څلورمه ورځ د کيسې په دويمه برخه ښه پوه شي. دا به د شاګردانو د حافظې د تقويه کولو تمرين هم وي.

**د متن ډولونه**

په دوهم ټولګي کې، متنونه دوه ډوله دي، چې روايتي متنونه او توضيحي يا معلوماتي متنونه بلل کېږي. روايتي متنونه معمولاً هغه کيسې دي چې کرکټرونه، پلاټ (مشخص ځای، زمان)، غوټه (ستونزه) او د غوټې حل لري. دا کيسې د خوند او پند لپاره وي. توضيحي متنونه هغه متنونه دي چې زده کوونکو ته معلومات ورکوي. دغه متنونه بيا پلاټ او نورې کيسه ييزې برخې نه لري. مثلاً د لاسونو پرېمينځل يا د خپل ځان د پاک ساتلو په اړه د معلوماتو ورکول، معلوماتي متنونو کې راځي. زده کوونکي بايد معلوماتي متنونه زده کړي او پر معنا يې پوه شي. همداراز، په درسي کتاب او نورو درسونو کې اکثره متنونه په روايتي او ځينې نور يې په معلوماتي بڼه راغلي دي. د توضيحي او روايتي متنونو په لوستلو سره به زده کوونکي د متنونو دواړو ډولونو د لوستل او پرې پوهېدل زده کړي.

**د رواني رغونې ټولګی**

**د زده کوونکي خونديتوب**

د ماشومانو او ځوانانو خونديتوب دا معنا لري چې څوک ور څخه ناوړه ګټه وانه خلي، استثمار يې نه کړي، بې غوري ورته ونه کړي، د ماشوم رواني، احساسي/ عاطفي، سلوکي، اجتماعي، فزيکي، او اقتصادي اړخونو ته توجه وکړي. ښوونکی خپلو زده کوونکو ته د سالمې درسي فضا په برابرولو کې حياتي نقش لري. د رواني رغونې په ټولګيو کې ښوونکی له زده کوونکوسره مرسته کولی شي چې پرځان باور پيدا کړي، خپل ارزښت وپېژني، ځان قابو کړي، له نورو سره ټولنيزې اړيکې ټينګې کړي، له ټولګيوالو او ښوونکي سره ښه اړيکې وپالي او دا هر څه د زده کوونکي د عمومي وضعيت په ښه کېدو کې مرسته کوي.

**يو هوسا ماشوم يا ځوان دغه ځانګړنې لري**

- په خپل ژوند کې پر ملګرو او مشرانو باور لري او له هغوی سره ځان تړلی بولي
- پر خپل ځان اعتماد او باور لري
- پر ټولنيزو چارو (لکه مرکه، ګډ کار، د ستونزو حل او داسې نور) پاملرنه او تمرکز کوي
- له خپلو ملګرو او تولګيوالو سره مرسته او همکاري کوي
- د خپلې کورنۍ او ټولنې د نورو غړو درناوی کوي
- د کارونو په تر سره کولو باندې ډېر تمرکز کوي او په پوره پام سره يې تر سره کوي
- خپلې ورځنۍ چارې ښې ترسره کولی شي
- خوشحاله وي او د ژوند په خوند پوهېږي
- په زړه کې يې وېره او اندېښنه نه وي.

**مهم پيغام**

هر څوک د ماشومانو او ځوانانو د هوساينې لپاره جلا تعريف لري. معمولاً د اعتماد، د مثبتو اړيکو، خونديتوب او ډاډ احساس؛ او همدارنګه د ورځنيو چارو د پر مخ بيولو، له ملګرو، د کورنۍ له غړو، ښوونکو او د ټولنې له نورو غړو سره د مثبتو اړيکو درلودلو وړتياوې پکې شاملې دي.

## د هوسايني عناصر

هوساينه دغه پنځه عنصرونه لري:

۱. د کنټرول احساس
۲. د تړاو/ خپلوي احساس
۳. د ځاني ارزښت احساس
٤. مثبتې ټولنيز اړيکې
٥. ذهني/فکري هڅوونه (ذهني پرمختګ)

### ۱. د کنټرول احساس

- کله چې زده کوونکي په ښوونځي کې د کنټرول احساس کوي، نو هغوی:
  - د خونديتوب او امنيت احساس کوي
  - د ثبات احساس لري
  - پر دې پوهيږي چې کومې هيلې لري او له دوی څخه کومې تمې کيږي
- د کنټرول حس کېدای شي د هغو ماشومانو او ځوانانو لپاره ځانګړې ارزښت ولري چې د بې ځايه کېدو او تاوتريخوالي له امله يې دغه حس زيانمن شوی وي.
- **ښوونکي د کومو فعاليتونو په ترسره کولو سره د کنټرول حس رامنځته کولی شي؟**
- ورځنی مهال وېش ولرئ او له زده کوونکو هم وغواړئ چې دا ډول مهال ويش له ځان سره وساتي.
- مهال وېش عملي کړئ.
- ټولګی هره ورځ په همدې ډول پيل کړئ او همداسې يې ختم کړئ.
- درسي پلان له ځان سره ولرئ او عملي يې کړئ.
- وګورئ چې زده کوونکو د درس هدفونه تر لاسه کړي دي، که نه.

### ۲. د تړاو (خپلوي) احساس

ولې مهمه ده چې زده کوونکي خپل تعليمي ماحول خپل وګڼي او ځان ورپورې تړلی وبولي؟

- کله چې زده کوونکي په ښوونځي کې د خپلوي احساس وکړي نو:
  - خپلو ټولګيوالو، ښوونکو او د ښوونځي ټولنې ته درناوی کوي.
  - پر خپلو ټولګيوالو پام کوي او ورسره خواخوږي کوي.
  - پر خپلو ښوونکو اعتماد کوي او خپل يې ګڼي
  - احساس کوي چې په ښوونځي کې منلی شخص دی او نور يې هرکلی کوي.
  - احساس کوي يوازې نه دی، بلکې د يوې ډلې غړی دی.
  - دا شيان به سبب شي چې زده کوونکي په منظم ډول ښوونځي ته راشي (غير حاضري ونه کړي).
- دغه د خپلوي احساس په تېره بيا د هغو زده کوونکو لپاره ډېر مهم دی چې د بحران او جګړو په وجه راکډه شوي وي.
- د ټولګي په فعاليتونو کې د زده کوونکو د شاملولو له لارې کولی شو د خپلوي يا تړاو حس يې راژوندی کړو.
- د ټولو زده کوونکو د ګډون لپاره، هغوی ته دوه نفري، ګروپي او خپلواک کارونه وسپارئ.
- هغه زده کوونکی چې په ټولګي کې د يوه ځانګړي رول لپاره ټاکل کېږي، د هغوی نقش وخت پر وخت بدل رابدل کړئ.
- پر ټولو زده کوونکو يو شان پام وکړئ.
- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې خپل کار ټولګي ته وړاندې کړي
- د ټولو زده کوونکو کار ټولګي ته وښيئ.
- د ټول ټولګي په کچه د پوښتنې د مطرح کولو يا پر ټول ټولګي د غږ کولو تخنيک.
- که ښوونکی د پوښتنې هغه تخنيکونه وکاروي چې ټولو زده کوونکو ته خطاب کوي، نو د زده کوونکو لپاره

په ټولګي کې د ځواب ورکولو فرصت زیاتېږي. دا کار زده کوونکي پوهوي چې په فعالیتونو کې د دوی برخه اخیستلو ته اهمیت ورکول کیږي، او دا چې دوی د ټولګي د ټولنې برخه ګڼل کېږي.

- دا کار له زده کوونکو سره مرسته کوي چې د خپلوۍ احساس ولري.

### ۳. د ځاني ارزښت احساس

کله چې په ښوونځي کې زده کوونکي د ځان ارزښت احساس کړي، نو: ځان ورته غښتلی او باوري ښکاري.

- ځان ورته په چارو کې بریالی ښکاري.
- له خپل ځانه به راضي وي او پر ځان به باور ولري
- پر ځان او خپله توانایي ویاړي.
- سبا ته هیله من وي او احساس کوي چې خپل راتلونکی به پخپله جوړوي.

دا مهمه ده چې په تېره بیا په هغو ماشومانو کې د خپل ارزښت احساس پیدا کړو چې د ناخوالو، جګړو او نورو مصیبتونو په وجه ځپل شوي دي او ځانونه ورته کمزوري ښکاري.

**څنګه په زده کوونکو کې د برترۍ او ښه والي احساس پیدا کړو:**

- زده کوونکي مه سپکوئ.
- له ټولو زده کوونکوسره ښه چلند وکړئ.
- زده کوونکي مه وهئ.
- زده کوونکي وهڅوئ چې د ټولګي په فعالیتونو کې برخه واخلي.
- زده کوونکي مه ګواښئ.
- زده کوونکو ته په احترام قایل شئ.
- د زده کوونکو دندې او نومونه واخلئ او نورو ته یې وښيئ. (مثلاً: احمد به د «قلم» د کلمې توري راته ووایي).
- مقررات او انضباط پر ټولو زده کوونکو یو ډول عملي کړئ.
- زده کوونکي وهڅوئ چې پوښتنې وکړي.
- زده کوونکي وستایئ.
- د زده کوونکو ځایونه بدل رابدل کړئ.
- وګورئ چې درس او فعالیتونه د زده کوونکو له سویې سره برابر دي که نه.

### ۴. د مثبتو ټولنیزو اړیکو وده

- کله چې زده کوونکي په خپلو منځو کې او له خپل ښوونکي سره ښې اړیکې وپالي نو:
  - مثبت اجتماعي مهارت ترلاسه کوي.
  - ځان ورته په دې ارزښتمن ښکاري، چې نور یې خبرو ته غوږ نیسي، پام ورته کوي او ستایل کېږي.
  - رواني ملاتړ احساسوي.
  - پر خپل ځان باور یې زیاتېږي.
  - د باور کولو احساس یې غښتلی کېږي.
- له زده کوونکو او ښوونکي سره د ښو روابطو جوړول د هغو ماشومانو لپاره چې ستونزو ځپلي وي، لا زیات اهمیت لري.
  - په سختو او بیړنیو حالاتو کې له مشرانو، کورنیو او ټولنې سره د ماشومانو اړیکې یو څه خرابېږي چې باید پام ورته وشي. د دغو روابطو په بیا جوړولو کې د ماشومانو لاس نیوی ضروري دی چې په ماشومانو کې د اعتماد، خوندیتوب او رواني امنیت احساس پیدا او پیاوړی کېږي.
  - کله چې زده کوونکو په خپلو کې مثبت اړیکي پالي، د دوی اجتماعي مهارت پیاوړی کېږي، خوشحالېږي، له نورو سره خواخوږي پیدا کوي او زغم یې زیاتېږي.

**ښوونکی څنګه کولای شي چې د زده کوونکو تر منځ مثبتو اړیکو ته وده ورکړي؟**

- ګروپي کار وکړئ.

- زده کوونکو ته وخت ورکړئ چې له یو بل سره لوبې وکړي.
- دې ته پام وکړئ چې د زده کوونکود اداره کولو لپاره قوانین شته.
- زده کوونکو ته د خبرو وخت ورکړئ چې یو بل سره وپېژني.
- له زده کوونکو سره په درنښت وچلېږئ.
- گروپی تمثیلونه تر سره کړي.
- ډله ییز فعالیتونه زده کوونکو ته مثبته انرژي ورکوي.
- ډله ییز بحث او د نظرونو د تبادلې زمینه برابره کړئ.

**۵. د زده کړې هڅوونکی چاپېریال**

- د زده کړې لپاره زده کوونکي باید ښه احساس ولري. همدا رانگه کله چې زده کوونکي درس ښه زده کړي، نو احساس به یې ښه شي.
- کله چې زده کوونکي ته ښکاره شي چې درس ښه زده کوي او له زده کړې خوند اخلي، نو:
  - پر ځان باور یې زیاتېږي.
  - راتلونکي ته هیله من کېږي.
  - احساسوي چې په ښوونځي کې له وخت څخه سمه استفاده کوي او ښوونځی د دوی پر ژوند مثبت اثر ښندي.
- ورته معلومېږي چې هرڅوک چې په درسي فعالیتونو کې برخه واخلي، درس به یې ښه زده شي.
- هرڅوک درسونه په بېله طریقه ښه زده کولی شي، نو که په مختلفو درسي فعالیتونو کې برخه واخلي، درس به یې ښه زده شي او بیا به له زده کړې څخه خوند اخلي.

ښوونکی باید د تدریس داسې بېلابېلې لارې چارې پلان او عملي کړي چې هره ورځ په کې د زده کوونکو درسي فعالیتونه شامل وي او ټول زده کوونکي پکې ونډه ولري.

- یوه لاره یې دا ده چې ښوونکی مختلفې پوښتنې وکړي او زده کوونکي په درسي فعالیت کې راگډ کړي.
- کله چې زده کوونکي گوري چې درسونه یې ښه زده کېږي او په درسي فعالیتونو کې هم برخه اخلي، نو هوسا کېږي.

**د زده کړې هڅوونکی چاپېریال د زده کوونکو پر هوساینې څه اغېز ښندي؟**

په درسي فعالیتونو کې فعال زده کوونکي دغه ځانگړنې لري:

- درس او زده کړې ته لېوال وي.
- ټولگي ته په منظم ډول راځي
- له نورو زده کوونکو سره مرسته او ښه چلند کوي.
- د پوښتنې او تجربه کولو خطر پر ځان مني.
- د ټولگي په ټولو فعالیتونو کې برخه اخلي او خپله کورنۍ دنده ترسره کوي.
- ښه عادتونه لري او د نورو درناوي کوي.
- د ښوونکي خبرو ته ښه غوږ نیسي او پوره پام ورته کوي.

**غیرفعال زده کوونکي**

هغه زده کوونکي چې په درسي فعالیتونو کې برخه نه اخلي لاندې ځانگړتیاوې لري:

- په ټولگي کې ستړي ښکاري.
- ټولگي ته چمتو او منظم نه راځي.
- خپل ټولگیوال او ملگري اخلالوي او له هغوی سره مرسته نه کوي.
- د ټولگي په فعالیتونو کې ونډه نه اخلي او ټولگی اخلالوي.
- له نورو سره ښه چلند نه کوي.
- په ټولگي کې درس ته غوږ نه نیسي او درس ته پام نه کوي.

**د زده کوونکي د هوساینې چوکاټ**

په یوه مناسب ښوونیز چاپېریال کې هوسا زده کوونکي دغه کارونه ترسره کوي:

| د زده‌کوونکي هوساینې عناصر | د ښې هوساینې په وخت کې د زده کوونکو د فعالیتونو بېلګې دا دي: |
|---|---|
| د کنټرول احساس لرل | وخت پېژندل او د مهال ویش له مخې کار ترسره کول، د کورنۍ دندې سرته رسول، درس ویل او کوښښ کول، درناوی کول، غوږ نیول، په درسي فعالیتونو کې برخه اخیستل.... |
| د خپلوۍ یا تړاو احساس لرل | یوه بل ته احترام کول، له نورو سره ښه چلند او مثبتې اړیکې درلودل، په منظم ډول ټولګي ته حاضرېدل، ښوونکو او خپلو ملګرو ته درناوی، له خپلو ټولګیوالو سره یوځای کار کول او له هغوی سره مرسته کول، ټولګیوال د هغوی په نومونو بلل، د ښو تکړه زده کوونکو په ډلو کې شاملېدل، ټولګی خپل ګڼل، په ډله ییزو کارونو کې برخه اخیستل، د ټولګي د مقرراتو پېژندل او عملي کول، له خپلو ټولګیوالو او ملګرو سره ستړي مه شي کول او هغوی ته ښه راغلاست ویل، د ټولګي په فعالیتونو کې د برخې اخیستولو پرمهال د ویاړ او خوښۍ احساس کول .... |
| د ځاني ارزښت احساس لرل | له نورو سره د خپلو نظرونو شریکول، له نورو سره مرسته کول، په ډله ییزو فعالیتونو کې ګډون کول، په خپل نفس اعتماد او باور درلودل، راتلونکې ته هیله مندي، په ټولګي کې پوښتنې کول او د ښوونکو پوښتنو ته ځواب ورکول، د درس په هدفونو ځان پوهول او لاسته راوړل یې .... |
| د مثبتو ټولنیزو اړیکو پیاوړي کول | په ټولګي کې ښه ملګري لرل، له خپلو ټولګیوالو سره په درسونو کې مرسته کول، له خپلو ټولګیوالو او ملګرو څخه مرسته غوښتل، له خپلو والدینو او د کورنۍ غړو سره مرسته کول، له ښوونکي څخه د خپلو ستونزو د هوارۍ په اړه پوښتنه کول، په ډله ییزو کارونو کې برخه اخیستل، لاسي کارونه تر سره کول، له ټولګیوالو، ښوونکو، مشرانو، ګاونډیانو او د کورنۍ له غړو سره مثبتې اړیکې درلودل .... |
| د زده کړې هڅوونکي چاپیریال را منځته کول | د ذهني ودې لپاره د مناسب چاپېریال درلودل، له نورو سره ښه چلند کول، د ټولګي په فعالیتونو کې په ګډون سره د خوښۍ او ارامتیا احساس کول؛ لکه (روزنیزې لوبې کول، ګروپي کارونه کول، رسامي کول، د کیسو، د هېواد پالنې ترانو او شعرونو لوستل...)، په ټولګي کې د خپل احساس بیانول، تعلیمي پرمختګ درلودل، د زده کړې قابلیت او ملاتړ درلودل |

**ټولنیزه - عاطفي زده کړه**

اجتماعي عاطفي مهارتونه هغه شناختي، عاطفي او ادراکي مهارتونه دي چې له هر چا سره مرسته کوي چې په ژوند کې بریالی شي . ټول انسانان (ماشومان او لویان) په دې مهارتونو سره کولی شي معلومات بې له دې چې ګډوډ شي، تنظیم کړي، له خپلې حافظې کار واخلي، خپل احساسات او عواطف کنټرول کړي، کار ته دوام ورکړي، ستونزې حل کړي او له نورو سره ښې اړیکې ټینګې کړي.

د زده کوونکو په درسي کتاب کې د ټولنیزو عاطفي مهارتونو د روزلو لپاره بېلابېل فعالیتونه، پوښتنې او متنونه راغلي دي چې ښوونکی د دې مهارتونو په انتقال کې مهم نقش لرلی شي. د ټولنیزو – عاطفي مهارتونو پنځه اساسي عناصر به په تفصیل سره تشریح شي.

**ټولنیز - عاطفي مهارتونه څه اهمیت لري؟**

ټولنیز - عاطفي مهارتونه ماشومانو او لویانو ته هغه مهم اسباب او لارې چارې برابروي چې په خپل ژوند کې بریالي واوسي او ښه پرمختګ وکړي. دغه مهارتونه په تېره بیا د هغو ماشومانو لپاره چې له ناخوالو لکه فقر، تاوتریخوالي، کډوالۍ او بې ځایه کېدو سره مخ شوي وي، ډېر مهم دي. ناخوالې تل د ماشومانو پر هوساینې او پرمختګ منفي اغیزه کوي. ټولنیز – عاطفي مهارتونه ماشومانو ته هغه اسباب او لارې چارې برابروي چې پر خپل درس تمرکز وکړي، احساسات کنټرول کړي، له نورو سره مناسب متقابل عمل وکړي، د فشار او سختیو په مقابل کې ودرېږي او خپل ځان بریالیتوب ته ورسوي.

**څنګه کولای شو ټولنیز - عاطفي مهارتونه په سمه توګه زده کوونکو ته وښیيو؟**

څېړنو ښودلې ده چې په بېلابېلو لارو چارو د ټولنیزو - عاطفي مهارتونو زده کول خورا ګټور وي، خو تل باید له ښو اړیکو او ځانګړې پاملرنو سره مل وي.

١. د ټولنیزو - عاطفي مهارتونو روښانه لارښوونه: دا لارښوونه باید مستقیمه وي او په روښانه، متمرکز او متداوم ډول ترسره شي.

٢. په ټولو تعلیمي ساحو کې د ټولنیزو - عاطفي مهارتونو تدریس په پام کې نیول. په ټولو ورځنیو پیداګوژیکي او صنفي فعالیتونو کې د ټولنیزو – عاطفي مهارتونو ورښوول باید تقویه شي.

٣. د ابتکاري او تخلیقي فعالیتونو له لارې د ټولنیزو - عاطفي زده کړو عملي کول، مثلاً په ټولګي کې د هغو لوبو او فعالیتونو تر سره کول چې په مستقیم ډول تدریس شوي، عاطفي مهارتونه تقویه کوي.

٤. په دې کار کې د کورنیو او ټولنې شاملول: میندو پلرونو او کورنیو ته دې د ټولنیزو – عاطفي مهارتونو په اړه کې معلومات ورکړل شي او هغوی دې په دې پروسه کې شریک کړای شي.

**د ټولنیزو - عاطفي مهارتونو محتویات څه دي؟**

په اجتماعي – عاطفي مهارتونو کې دغه برخې شاملې دي:

١. د زده کوونکو ذهن وده کوي چې له دې سره به دوی په ښوونځي او ژوند کې بریالي شي. (ذهني وده).

٢. د زده کوونکو د عاطفي وړتیاوو او پوهې وده چې خپل احساسات او عواطف وپېژني او کنټرول یې کړي( د احساساتو او عواطفو کنټرول)

٣. زده کوونکي به له نورو سره د اړیکو په جوړولو کې تکړه شي. ملګري به پیدا کړي، خپل احساسات به کنټرول کړای شي او له منفي عکس العملونو څخه به ډډه وکړي (مثبتې ټولنېزې اړیکې)

٤. د شخړو او منازعاتو حل؛ زده کوونکي به دا زده کړي چې څنګه اختلافونه او شخړې په مناسبه او معقوله توګه حل کړي. (د شخړو او اختلافونو د هواري مهارتونه)

٥. د استقامت او مبارزې مهارت؛ زده کوونکي به زده کړي چې د ځان لپاره هدفونه وټاکي او په سختو او بېړنیو شرایطو کې هم له کار او مبارزې لاس وانه خلي او مثبته نتیجه ترلاسه کړي.

**د ټولنیزو - عاطفي زده کړې د مفاهیمو او بېلګو لنډ جدول**

| وړتیاوې | تعریف | بیلګې |
|---|---|---|
| ذ هني وده | د مهارتونو هغه مجموعه ده چې راسره مرسته کوي چې فکري تمرکز ولرو، لارښوونې په یاد وساتو، په عین وخت کې ګڼ کارونه داسې تنظیم کړو چې په ټولو پسې ورسېږو، د خپل نږدې او لرې راتلونکې لپاره پلان جوړ کړو، منفي فکرونه له ذهنه وباسو او خپل احساسات او هیجان قابو کړو. | د غوږ نیولو مهارتونه، فکري تمرکز، لارښوونو ته پام کول، د یوه کار د پړاوونو او د معلوماتو منطقي تنظیم، او له حافظې څخه کار اخیستل. |
| د کنټرول احساس | د مهارتونو هغه ټولګه ده چې راسره مرسته کوي چې خپل احساسات او عواطف درک کړو، ویې پېژنو او کنټرول یې کړو. د کنټرول احساس موږ ته هغه اسباب او لارې چارې راښیي چې د خپلو عواطفو په اړه وړاندوینه وکړو او کنټرول یې کړو. | د احساساتو او عواطفو پېژندل، د احساساتو او عواطفو وړاندوینه، د احساساتو کنټرول لکه: ژوره ساه اخیستل، د عددونو شمېرل. |
| مثبت ټولنیز مهارتونه | د مهارتونو هغه ټولګه ده چې راښیي، څنګه د نورو احساسات او سلوک درک کړو او له دې لارې ورسره ښه اړیکې وپالو. په دې سره به ملګرتیا جوړه شي او ستونزې به ختمې شي. | د نورو د احساساتو درک کول او منل، د زړه سوي او ترحم زیاتېدل، او په ډله‌ییزو فعالیتونو کې برخه اخیستل. |

| د شخړې د هوارولو مهارتونه | دغه مهارتونه راسره مرسته کوي چې شخړې او ستونزې له رامنځته کېدو سره سم، په مثبت او منطقي ډول هوارې کړو. دا ډول مهارتونه پر خلکو د شخړو اغېزه کموي او مثبتې نتيجې رامنځته کوي. | د ستونزو پېژندل او په ګوته کول، شخړو ته د حل لارو پيدا کول او د شخړې د حل لارو سم عملي کول. |
|---|---|---|
| هڅه او استقامت | د مهارتونو دغه مجموعه موږ ته دا وړتيا راکوي چې د ستونزو او ننګونو پر وړاندې ودرېږو او د خپلو موخو پر لورې پياوړي او کلک ګامونه پورته کړو. د دې مهارتونو لاسته راوړل رابښيي چې د زده کړې ټوله دوره ډېر زيار او کوښښ غواړي. خپل هدف ته په اسانۍ نه شو رسېدلی نو بايد ورته ټينګ شو او د ستونزو د حل لپاره له نورو څخه مرسته وغواړو. | د تصميم نيولو له مهارتونو څخه ګټه اخيستل،<br>د هدف ټاکل او تنظيمول، د خپل هويت تثبيتول. هڅه او هلې ځلې کول.<br>- له نورو څخه مرسته غوښتل. |

**حسن خط:**

په لومړي او دوهم ټولګي کې زده کوونکي د حسن خط له مفرداتو سره يعنې په جلا او ګډه توګه د نسخ خط د تورو له ليکلو سره بلدېږي او همدارنګه د قلم نيولو او له مشوانۍ څخه د ګټې اخيستلو لارې چارې (طريقې) زده کوي.
په دې ټولګيو کې زده کوونکو ته ښودل کېږي چې په کړکي يا نی سره د نسخ خط توري وليکي او د کرسی خط پر مخ د تورو حرکت او ترکيبونه په دقيقه توګه زده کړي، نو په درسي پلان کې بايد ور څخه کار واخيستل شي.
د يادونې وړ ده چې د ښکلي خط ليکل له مشق او تمرين سره مستقيمه اړيکه لري.
څومره چې مشق او تمرين ډېر ترسره شي په هماغه اندزه خط ښکلی، جالب او ښه کېږي.
ښکلی خط ليکل يو هنر دی. تاسو کولای شی له زده کوونکو سره د هڅو او کوښښونو په پای کې دا هنر تر لاسه او زده کړئ او د هېواد د هنر او فرهنګ په ډګر کې اوچت ګامونه پورته کړئ.**د ښکلي خط ليکلو هنر**
د خط لغوي معنا ده: پر کاغذ او نورو شيانو د قلم اثر يا نښه.
خط په لغت کې د قلم په واسطه ليکلو ته وايي. د هنر د پلويانو او د قلم د خاوندانو له نظره د تورو د ښو او انځورونو ليکل دي چې په جملو او کرښو کې يې معنا په پام کې نيول شوې او د انسان د پټو غوښتنو څرګندونه هم کوي. يا په بله وينا: خط د لاس ژبه ده، د انسانانو د زړه او دماغ د پيغام رسوونکی او وديعه ګاه(امانت) يعنې هغه مال چې په امانت ډول يې چا ته کېږدي. د خط د ارزښت په اړه بايد يادونه وکړو چې که خط نه وای نو په نړۍ کې به آثار هم نه وو.
باالاخره؛ خط د اسرار څرګندونکی، د اختيار د پيدا کولو سر چينه او د آثارو ساتونکی دی.
اوس به وګورو چې د ښکلي خط ليکلو فن يا هنر څه شی دی؟د ځينو پوهانو له نظره د خطاطۍ هنر ښکلي ليکل دي او ځينې يې د يادولو او زده کړې وړصنعت او هنر بولي.
**د حسن خط د وسايلو پېژندنه:**
**د خطاطۍ کاغذ(ګلاسه):** هغه کاغذ دی چې شفاف او نسبتاً ښوی (لشم)
وي او د کړکي قلم پرې په آسانۍ سره وخغلي او رنګ نشر نه کړي. د خطاطی د کاغذ (ګلاسه) د نشت والی په صورت کې زده کوونکی کولای شي د عادي کاغذ پر مخ مشق و کړي.





**د کړکي قلم:** کله چې دورمې(نی) ښې پخې شي، بيا ترې د کړکي قلم جوړوو چې ښه جوړ يا سر شي، او د قلم د څوکه ژر خرابه نه شي. د خطاطۍ له پاره داسې کړکی وټاکئ چې اوږد وي او بندونه و نه لري او يا يې بندونه په وروستۍ برخه کې وي، ځکه چې بندونه د لاس د آزار سبب ګرځي.





**قلم توړونکی:** یو ځانګړې چاقو دی، تیغه یې یو څه نازکه او د تېغې شا یې نرۍ وي چې قلم په ښه توګه وتوړلی شي.

**پرې کوونکی:** ډېره کلکه وسیله ده چې له کلک لرګي او یا د ښاروېو په تېره بیا د غرڅې له ښکر څخه جوړېږي چې د قلم د نوکې لاندې اېښودل کېږي او قلم پرې قطع یا پرې کېږي.



**لیقه:** د الیافو له جریو، وریښمو او یا د خامک ګنډلو له سُنډو څخه لاسته راځي، خو لومړی باید پر اوبو او صابون پاک پرېمینځل شي چې کیمیاوي مواد یې له منځه لاړ شي او تر وچېدو وروسته په بوتل کې ځای پر ځای کېږي. لیقه د رنګ له چپه کیدو د کاغذ پرمخ د قلم د رنګ زیاتوالي، د لاس او جامو د ککړېدو مخنیوی کوي.د یادونی وړ ده چې له مالوچ څخه په لیقه کې ګټه وا نه اخیستل شي، ځکه چې واړه تارونه یې د قلم په څوکې پورې نښلي او د لیکلو په وخت کې مزاحمت کوي.
**سیایي**: هغه رنګ دی چې د مشق کولو له پاره ترې ګټه اخیستل کېږي او په بازار کې د کړکي قلم د سیایي په نوم یادېږي. په پخوا زمانو کې خلکو سیایي له ترکیبي موادو څخه جوړوله چې له همدې کبله د مرکب په نوم هم یادېږي.
**مشوانۍ**: هغه بوتل دی چې (سیایي او لیقه) پکې اچول کېږي. باید داسې بوتل وټاکو چې خوله یې د نورو بوتلونو په نسبت لویه وي.



**څلور خطونه:** د تورو د ترتیب، تنظیم او صحیح لیکلو لپاره کارول کېږي چې په څلورو خطونو کې دریم خط یې د کرسي خط په نوم یادېږي، چې توری د همدې خط په لاندې یا باندې برخه کې ښکل کېږي.




**د کرسی خط**: هغه مستقیم افقي خط دی چې د پنسل او خط کش په واسطه تت او کم رنګه ایستل کېږي چې خط سم ولیکل شي.

ښاغلو ښووکو!: دویم زده کوونکو ته سپارښتنه وکړئ چې د مشق کتاب، د کړکي قلم او مشوانۍ له ځان سره ټولګي ته راوړي او هغوی دې وپوهوئ چې د مشق تمرین دې د تمرین په کتابونو کې ترسره کړي. هغوی ته ووایئ چې په درسي کتاب کې له لیکلو څخه په کلکه ډډه وکړي.
همدارنګه هغوی ته لارښوونه وکړئ چې خپل قلمونه دې له مشق کولو څخه وروسته پاک کړي، چې د لاسونو او کالیو د ککړتیا سبب نه شي، د زده کوونکو قلمونه سر (توړل/جوړ) کړي او هغوي د چاقو اخیستلو څخه منع کړئ. دا ځکه د چاقو اخیستل دماشومانو لپاره خطر ناک وی، زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ له مشق کولو څخه مخکې، لومړی د کتاب سر مشق ښه وګوري، چې سترګې یې د تورو له شکلونو سره آشنا شي وروسته بیا د قلم په واسطه د کتاب د سر مشق له مخې تمرین تر سره کړي.

**سر مشق:** هغه لیک دی چې ښوونکی یې لیکي او زده کوونکي د هغې له مخې مشق تمرین کوي. د حسن خط په مضمون کې سر مشق هغو بېلګو ته وایي چې د زده کوونکو د تمرین له پاره په پام کې نیول شوې دي. د تورو د لیکلو حرکتونه په غشو ښودل شوي دي چې هر حرکت یوه شمېره لري او د توري د لیکلو حرکتونه په ګوته کوي.

ښوونکی دې زده کوونکو ته د لیکلو پر مهال د تورو حرکتونه پر تخته یا د تمرین په کتابونو کې وروښایي چې هغوی هم توري په هماغه ډول ولیکي.

با بت بج بد بر

ښوونکی دې د حسن خط د درسي ساعت اړوند ټول فعالیتونه ( مقدماتي فعالیتونه ۵ دقیقې، د درس ویلو فعالیت ۳۵ دقیقې او ارزونه او کورنۍ دنده (۵ دقیقې) په سمه توګه عملي کړي.

**د خط عمومي موخه:** د حسن خط مضمون له تدریس څخه موخه داده چې زده کوونکي وکولای شي د نسخ خط د خطاطۍ او ښکلی لیکلو له طرز، اصولو او قواعدو سره آشنا او هغه په سمه توګه زده کړي او په ورځنې ژوند کې ورڅخه عملاً ګټه واخلي.

**د دویم ټولګي د حسن خط مضمون د زده کړې موخې:**

- زده کوونکی د حسن خط له وسایلو، لکه: مرکب (رنګ) « د ښکلی لیکلو لپاره ځانګړي مواد دي چې په دوه ډوله (وچ او لانده) په بازار کې موندل کېږي»، نی قلم او یا (پنسل او خودکار) څخه په سمه توګه کار واخلي.
- زده کوونکي په نسخ خط سره د کرسي خط پر مخ د توری/تورو ځایونه او جهتونه په پام کې نیسی او په ښکلې بڼه یې خطاطي کوي
- زده کوونکي توری او د تورو ترکیبي حالت په نسخ خط او د خطاطۍ د اصولو او قواعدو په پام کې نیولو سره په ښکلې بڼه لیکې.

**د دویم ټولګي د حسن خط د تدریس میتودولوژی:**

په دویم ټولګی کې د حسن خط مضمون د تدریس لپاره د تدریجي ګذار ( « زه یې تر سره کوم» چې په دې پړاو کې زیاتره درسی فعالیتونه د ښوونکي له خوا تر سره کیږي، « موږ یې تر سره کوو» درسي فعالیتونه د ښوونکي او زده کوونکو له خوا په ګډه تر سره کیږي، « تاسو یې تر سره کوئ» زیاتره درسي فعالیتونه د زده کوونکو له خوا تر سره کیږي.) له میتودولوژۍ څخه ګټه اخیستل کیږي. د دې میتودولوژي په ښه کارولو سره ښوونکي لومړی ښوونکی زده کوونکو ته د تدریس اړین فعالیتونه تر سره کوي او بیا په تدریجي توګه د تدریس او زده کړې فعالیتونه له ښوونکي څخه د زده کوونکو خوا ته لیږدول کیږي، تر څو هغوی سمه زده کړه وکړای شي او لازم معلومات او قابلیتونه تر لاسه کړي.

| زه یې ترسره کوم | موږ يې ترسره کوو | تاسو يې ترسره کوئ |
|---|---|---|
| - ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د حسن خط مضمون د اړونده لوست تمرين د مشق او تمرين په کتاب کې را واړوي.<br>-ښوونکي له څو زده کوونکي څخه غواړي چې د تمرين کتاب له اړوند لوست څخه توری ولولي.<br>زد ه کوونکی د ( ل) توری لولي.<br>- ښوونکی لومړی د تختې پر مخ د کرسي خط رسم کوي.<br>- ښوونکي دې د کرسي خط پر مخ د ( ل) توری وليکي<br><br>ښوونکي زده کوونکو ته د (ل) توری د ليکلو د ځای او جهت په اړه چې د کرسی خط پر مخ، پورته او یا کښته واقع دي، توضيحات ورکوي.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته روښانه کوي چې ځينې توري د کرسي خط پر مخ، ځينې توري د کرسي خط پورته خوا ته او ځيني توري بيا د کرسي خط ښکته خوا ته راځي.<br>-ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د مشق او تمرين په کتابونو کې د توری یا تورو جهتونه په گوتو او یا پنسلونو سره ځاري او ليکي يې.<br>- ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د مشق او تمرين په کتاب کې د رنگ او نی قلم په کارولو سره د ( ل) توری د کرسی خط پر مخ وليکي.<br>- زده کوونکي د تمرين په کتاب کې د توری/تورو ليکل تمرين کوي او ښوونکي له هغو زده کوونکو سره چې ستونزي لري مرسته کوي . | - ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د حسن خط مضمون د اړونده لوست تمرين د مشق او تمرين په کتاب کې را واړوي.<br>- ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د تمرين له کتاب څخه د اړونده لوست توری ولولي.<br>- ښوونکي زده کوونکو ته وايې چې زه اړنده توری د کرسي خط پر مخ ليکم، تاسو به د کرسی خط پر مخ د دي توري ځای او جهت را ته ووايي.<br>- زده کوونکي توری د کرسي خط پر مخ د هغه د ځای او جهت په پام کې نيولو سره د تمرين په کتابونو کې په ښکلي خط ليکل تمرين کوي.<br>- ښوونکي د زده کوونکو کار ځاري او له هغو زده کوونکو سره مرسته کوي چې ستونزې لري | -ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د حسن خط مضمون د اړونده لوست تمرين د مشق او تمرين په کتاب کې را واړوي.<br>- ښوونکي له زده کوونکو څخه غواړي چې د مشق او تمرين په کتابونو کې د اړونده لوست توری/توري د کرسي خط پر مخ تمرين کړي.<br>- زده کوونکو د کرسي خط پر مخ د توری/ توري د هغوی د ځايونو او جهتونو په پام کې نيولو سره خطاطي کوي.<br>- زده کوونکي د ښوونکي د لارښونو سره سم د مشق او تمرين په کتابونو کې توری/توري خطاطي کوي.<br>- ښوونکي په ټولگي کې د زده کوونکو کار ځاري او د اړتيا په وخت کې له هغوی سره مرسته کوي . |

**یادونه:**

۱ . محترم ښوونکي دې د تورو د خطاطۍ مشق او تمرين لپاره کټ مټ پورتني ټول مراحل کوم چې د تورو د خطاطۍ د مشق او تمرين لپاره تشريح شول په پام کې و نيسي.

۲. زده کوونکي دي د حسن خط په مضمون کې د تورو د خطاطۍ د مشق او تمرين په وخت کې بايد له نی قلم او مرکب (رنگ) څخه کار واخلي.

۳. د ښکلو ليکلو د تمرين په وخت کې مناسب ځای د ليکلو لپاره انتخاب کړئ چې پوره رڼا ولري او همدا شان ستاسو سترگې له هغه کاغذ څخه چې خطاطي پرې کوئ د (۳۰) سانتی مترو په شاوخوا کې فاصله ولري.

**د لوستلو د مرستندويه موادو د کارولو لارښود:**

د لوستلو مرستندويه مواد د زده کړې هغه توکي دي چې د ټولگي او د زده کوونکو د سويې پر بنسټ جوړ شوي دي تر څو د هغوی د لوستلو مهارتونه پياوړي کړي. د لوستلو مرستندويه مواد د زده کوونکو د لوستلومهارتونو ته وده ورکوي، هغوی لوستلو ته هڅوي او همدارنگه په هغوی کې د لوستلو روحيه پياوړې کوي.

ښوونکی دې په ټولگې کې د لوستلو مرستندويه مواد د لاندې لارښونو سره سم وکاروي تر څو له دې توکو څخه سمه گټه پورته شي او د زده کوونکو د لوستلو مهارتونه پياوړی شي.

**الف: د ټولګي د کتابون تنظیمول**

١. ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د کتابتون په نوم، لیبل او مهر سره، په نښه کړي.
٢. ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د ټولګي، سمیستر، سویې او اونۍ پر بنسټ تنظیم کړي.
٣. ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه ورته کتابونه د عنوان یا موضوع پر اساس هم تنظیم کړئ.
٤. ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه کتابونه د لاندې نمونوي فورمې په څېر لست او ثبت کړي.

ټولګی: دویم د ټولګي د کتابتون نوم: غازي امان الله خان نېټه: ۱۰/۹/۱۳۹۸

| شمېره | د کتاب نوم | د کتاب موضوع | لیکونکی | تعداد |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | دسترګو ساتنه | صحت | محمد سهراب دیدار | ۲۲ |
| ۲ | | | | |

٥.ښوونکي دې د لوستلو مرستندویه کتابونو باکس یا الماری په ټولګي کې په داسې ځای کې کېږدي چې ټولو زده کوونکو ته د لیدو وړ، خوندي او د لاسرسی وړ وي.
٦.ښوونکی باید د درسی ساعت په پای کې د ټولګي کتابتون (د لوستلو د مرستندویه کتابونو پلاستیکی باکس) په یوه خوندې ځای لکه: د ښوونځي کتابتون، د ښوونځي اداره او یا په بل هر خوندي ځای کې کېږدي او د بل درسی ساعت په پیل کې له هغه ځای څخه یې راواخلي او ټولګي ته یې له ځان سره یوسي.
٧.کله چې ښوونکي د لوستلو مرستندویه کتابونه زده کوونکو ته د لوستلو لپاره ویشي، هغوی دې د لاندې نمونه وي فورمې په څېر، راجستر کړي.

ټولګی:________ د ټولګي د کتابتون نوم:________ کال:________ اونۍ:________

| شمېره | د کتاب نوم | ټولګی | د اخیستلو نېټه | د سپارلو نېټه | لا سلیک / د ګوتي نښه | د ګټي اخیستونکي نوم: زده کوونکی | د ګټي اخیستونکي نوم: نورګټه اخیستونکی | ملاحظات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | دسترګو ساتنه | دویم | ۱۶/۱۰/۱۳۹۸ | ۲۱/۱۰/۱۳۹۸ | | معصومه | | |
| ۲ | دسترګو ساتنه | دویم | ۱۶/۱۰/۱۳۹۸ | ۲۱/۱۰/۱۳۹۸ | | محمود | | |

**ب: د لوستلو د مرستندویه کتابونو کارول**

١.د لوستلو د مرستندویه کتابونو د کمښت په صورت کې دې ښوونکي زده کوونکي د کتابونو د شمېر پر اساس په ډلو وویشي او هرې ډلې ته دې د اونۍ د ورځو په جریان کې په نوبت سره کتابونه د لوستلو لپاره ورکړي چې په دې توګه به ټول زده کوونکی وکولای شي د صنف، سمیستر، سویې او اونۍ اړونده کتابونه ولولي.
٢. ښوونکي دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د لوستلو مرستندویه کتابونه په کورونو کې ولولي، سم ساتلو ته یې دې پام وکړي چې خراب نه شي او په ټاکلي وخت یې ببرته ښوونکی ته وسپاري.
٣. ښوونکي دې د هرې اونۍ په تکراري ورځو ( پنځمه او شپږمه ورځ) کې د متن له بیا لوستلو څخه وروسته له څو زده کوونکو څخه د لوستل شوي کتاب په هکله ځینې پوښتنې وکړي، لکه:

- په کتاب کې مو څه ولوستل؟
- په کتاب کې مو څه شی خوښ شو او څه شی مو د خوښې وړ نه و، او ولې؟
- د کتاب په لوستلو کې له څه ډول ستونزو سره مخ شوئ؟
- آیا تاسو په خپل ژوند کې له داسې پیښو سره مخ شوي یاست، بیان یې کړي؟

**یادښت:** ښوونکی دې هغو ماشومان ته چې د لوستلو مرستندویه کتاب په لوستلو کی ستونزي لري او یا هم ورته آسانه وي نو، یوه سویه یا اونۍ ټیټ کتاب ورکړی چی ویې لولي. دا مهه ده چې زده کونکي باید د خپلې سویې سره سم او مناسب کتاب ولولي او په دې سره یې د لوستلو مهارت اوچت شي. خو که چیری ماشومانو ته د لوستلو د مرستندویه کتاب متن اسانه اوساده وي تاسو ورته یوه سویه جګ کتاب ورکړئ.

**لومړۍ اونۍ ته کتنه** **موضوع:** چاپېریال **فرعي موضوع:** ټپي پیشو **توري:** ا، ل

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ا، ل/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ا،ل) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د **مومن، عبادت، ټپي، مننه، کلینیک** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې به سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ا، ل) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسۍ خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**د ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- له خلکو او حیواناتو سره د اړتیا پر وخت د مرستې کولو ارزښت بیان کړي.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ا،ل) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې له کرکې یا پنسل قلم سره د (ا،ل) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

### د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه

-د درس موخې او د ټولګي مقررات زده کوونکو ته تشریح کړئ.
-" زه یې تر سره کوم، موږ یې ترسره کوو، تاسې یې ترسره کوئ " له روش څخه په اړونده برخو کې کار واخلئ.
-زده کوونکو ته د درس هغه برخې چې ستونزه پکې لري، تکرار کړئ.
-له ځینو هڅوونکو کلمو، لکه: آفرین، ډېرښه، کولای شئ، مننه، سم کار دې وکړ او نورو په ویلو سره په ټولګي کې ښه ښوونیز چاپېریال رامنځ ته کړئ.
-زده کوونکي باید له رواني پلوه وپېژنئ او د ستونزو په حل کې ورسره مرسته وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.
**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

### د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

**ټپي پیشو**

**لومړۍ برخه**

ملالۍ او اجمل خور او ورور دي. دوی له ښوونځي څخه کور ته روان وو. ملالۍ وویل: وی جار! چې دا به چا ویشتلې وي؟ اجمل پوښتنه وکړه: څه شی یادوې؟ ملالۍ ټپي پیشو ته ګوته ونیوه. پیشو په عاجزې سترګې ور پورته کړې. *

اجمل پیشو په غېږه کې راواخیسته. پر ملا یې لاس ورتېر کړ. ملالۍ ورته وویل: اجمله څه کوې؟ پیشو در سره کور ته وړې؟**

اجمل وویل: هوا!. نه ګورې، پښه یې **ټپي** ده. په کور کې به **پټۍ** پرې ولګوو. ملالۍ ورته وویل: هسې نه چې پلار مو راته **غوسه** شي.

**دوهمه برخه**

اجمل او ملالۍ کور ته راورسېدل. سلام یې واچاوه. مور او پلار یې سلام واخیست. د اجمل له بکس څخه د پیشو د میو میو غږ پورته شو. * ملالۍ **موسکۍ** شوه. پلار یې پوښتنه وکړه: اجمله! دا **موبایل** دې له کومه کړ؟ د پیشو غږ دې پکې بند کړی دی؟

اجمل وارخطا شو. ویې وویل: دا ..... دا.... دا خو پیشو ده. ** اجمل له بکس څخه پیشو راوایسته، پلار یې پټۍ پرې ولګوله. پیشو په څو ورځو کې جوړه شوه. پیشو به داسې خواږه خواږه میومیو کول تا به ویل **مننه** کوي. اجمل او ملالۍ له مور او پلار څخه خوشحاله وو چې پر پیشو یې ورته پټۍ لګولې وه.

مور او پلار یې هم خوشحاله وو چې د زوی او لور یې پر حیواناتو زړه خوږېږي.

**موضوع: الله جَلّ جَلاَلُهُ** **توری: ا**

**د زده کړې موخې**

١. د کلمې په پیل کې د / ا / غږ پېژندل.
٢. د ( ا ) توري لوستل او لیکل.
٣. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**١. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

١. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
٢. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
٣. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**٢. په هجاووډ کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

١. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**٣. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

١. ددې کلمو په هکله بحث وکړئ: **مهربانه** (نرم زړی)، **مومنان** (مسلمان)، **عبادت** (لمونځ، روژه ...).
٢. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
٣. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
٢. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره



١ اونۍ ١ لوست

| | |
|---|---|
| اُ سان | انسان |
| اَ خـتر | اختر |
| اِ مام | امام |
| پیـ دا | پیدا |

الله جَلّ جَلاَلُهُ

الله جَلّ جلالهُ یو دی. قرآن کریم د الله جَلّ جلالهُ کتاب دی. موږ ټول الله جَلّ جلالهُ پیدا کړي یو. موږ د الله جَلّ جلالهُ بنده ګان یو. الله جَلّ جلالهُ ډېر مهربانه دی. موږ مؤمنان یو. موږ د الله جَلّ جلالهُ عبادت کوو.

١

متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

١. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
٢. پوښتنه: موږ چا پیدا کړي یو؟
ځواب: الله جَلّ جَلاَلُهُ
٣. پوښتنه: قرآنکریم د چا کتاب دی؟
ځواب: د الله جَلّ جَلاَلُهُ
٤. ذهني پوښتنه: الله (ج) موږ ته کوم نعمتونه راکړي دي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

١. نوی غږ او توری له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده**: د ترکیب کلمې ۳ ځلې په کور کې ولولئ. ورځنۍ تمرین د تمرین په کتاب کې ترسره کړئ.

**موضوع:** اللّه جَلّ جَلالُهُ  **توري:** ا

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ا/ غږ پېژندل.
۲. د ( ا ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ا / غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور پېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **انار، کتاب، خرما**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیایي په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه(۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **تپې** (زخمي)، **پټۍ** (هغه ټوټه چې پر زخم تړل کېږي)، **غوسه** (قهر).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله لاندینۍ پوښتنې وکړئ.
* اجمل به څه کړي وي؟
** د اجمل ځواب به څه وي؟



**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: چا تپي پیشو ولیده؟
ځواب: ملالۍ.
۳. پوښتنه: اجمل څه وکړل؟
ځواب: پیشو یې په غېږ کې راواخیسته.
٤. ذهني پوښتنه: که تاسې د اجمل او ملالۍ پر ځای وای، له پیشو سره به مو څه کړي وای؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه کلمې ورونبیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ور ته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** لیلا او لیمه **توری:** ل

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د / ل/ غږ پېژندل.
۲. د (ل) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د ویم متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **نانځکه**(ګوډۍ، ناوکۍ)، **تبه**(د ناروغۍ په وجه د بدن تود والی)، **کلینیک**(هغه ځای چې د ناروغانو علاجې په کې کېږي).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.


۱ اونۍ ۳ لوست

ل

ک ـمال کمال
ج ـلال جلال
ج ـمال جمال
ډېـ وال ډېوال

لیلا او لیمه

لیلا او لیمې په نانځکو لوبې کولې. لیلا د نانځکې پر تندي لاس کېښود. ویې ویل: وی! سخته تبه یې ده. لیمې وویل: کلینیک ته به یې یوسو. د لیلا ورور پوښتنه وکړه: کلینیک څه ته وایي؟ لیمې وویل: په کلینیک کې د ناروغانو علاج کېږي.

۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: لیلا او لیمې څه کول؟
ځواب: له نانځکو سره یې لوبې کولې.
۳. پوښتنه: لیلا څه وویل؟
ځواب: ویَ! سخته تبه یې ده؟
٤. ذهني پوښتنه: که کوم ملګری یا د کورنۍ غړی مو ناروغ وي، تاسو ورسره څه ډول مرسته کولای شئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** لیلا او لیمه، تېږې پېښو **توری:** ل

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ل/ غږ پېژندل.
۲. د (ل) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ل/غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور پېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نمونه: ( **لمر، کېله، پُل**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړېیي او بیایې په یوازې ډول لولي.

**۳. دلوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې) له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **موسکی**(په خندا) **موبایل**(لاسي تلیفون)، **مننه** (تشکر).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه لاندینۍ



پوښتنې د کیسې په هکله وکړئ.
* څه فکر کوئ پلار به یې څه ویلي وي؟
** له پیشو سره به یې څه کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: د اجمل پلار چې د پیشو میومیو واورېدل، څه فکر یې وکړ؟
ځواب: فکر یې وکړ چې د موبایل غږ دی.
۳. پوښتنه: چا د پیشو پر پښه پټۍ ولګوله؟
ځواب: د اجمل او ملالۍ پلار.
۴. ذهني پوښتنه: موږ له ټپي حیواناتو سره ولې مرسته کوو؟

**۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته و وایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توري او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ا،ل

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ا/ ل/غږونو پېژندل.
۲. د (ا،ل) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل(د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. دغږونو اوریدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی توري پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه يې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: ۱.**مهربانه**، ۲.**عبادت**، ۳.**لوبي**، ٤ **کېږي**.

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسی کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوندو کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته ووایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په یوه جمله کې نورو ته ووایي: او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او یوه جمله ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **له خلکو یا حیواناتو سره د مرستې کولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**:خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د اونۍ تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ا،ل

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ا/ا، ل/ غږونو پېژندل.
۲. د (ا،ل) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
۴. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي ورته اشاره کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ۴. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **جومات** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **جو مات** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ:
**الله(ج)، بنده ګان، کتاب، پیدا، خوشحال، عبادت، مومنان**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او ځلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **الله جل جلاله یو دی.**
۶. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **موږ ټول الله جل جلاله پیدا کړي یو.**
- **موږ د الله جل جلاله بنده ګان یو.**
- **الله جل جلاله ډېر مهربانه دی.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې



**دویمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** کورنۍ **فرعي موضوع:** د مور او پلار حقونه **توري:** ب، م

## د اونۍ د زده کړې موخې

١. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د/ب/ او/ م/ غږونو پېژندل.
٢. د (ب، م) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
٣. له نوي توري سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل(د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د **پیل**، **تکړه**، **هوښیار**، **همزولی**، **درود**، **پیغمبر** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
٧. د دې اونۍ کلمې به سمې ولیکلای شي.
٨. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
٩. د (ب، م) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرښې خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

### ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه

- له نورو سره مینه او محبت ولري.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده‌کوونکو سره د (ب، م) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له څو زده‌کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده‌کوونکي دې له کرکي یا پنسل قلم سره د (ب،م) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

### د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه

-د درس موخې او د ټولګي مقررات زده‌کوونکو ته تشریح کړئ.
-" زه یې تر سره کوم، موږیې ترسره کوو، تاسې یې ترسره کوئ " له روش څخه په اړونده برخو کې کار واخلئ.
-زده‌کوونکو ته د درس هغه برخې چې ستونزه پکې لري، تکرار کړئ.
-له ځینو هڅوونکو کلمو، لکه: آفرین، ډېرښه، کولای شئ، مننه، سم کار دې وکړ او نورو په ویلو سره په ټولګي کې ښه ښوونیز چاپېریال رامنځ ته کړئ.
-زده‌کوونکي باید له رواني پلوه وپېژنئ او د ستونزو په حل کې ورسره مرسته وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده‌کوونکي وارزوئ.
**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

### د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

#### د مور او پلار حقونه

**لومړۍ برخه**

بریالی **هوښیار** هلک و. مور او پلار یې ورسره مینه لرله. پر نورو خپلوانو هم ګران و. د ماما زوی عبدالکبیر یې **همزولی** و. له هغه سره یې په باغ کې لوبې کولې.
ناڅاپه یې له باغ نه منډه کړه. عبدالکبیرغږ پرې وکړ: بریالیه! څه خبره ده چې داسې **وارخطا** شوې؟ *
بریالي وویل: ښه کار ونه شو. هغوی به وایي. چې دا خو دروغجن دی.
عبدالکبیر ورته وویل: دا څه ګډې وډې وایې؟ څوک به وایي چې دروغجن دی؟*
بریالي په بیړه ورته وویل: عبدالکبیره، اوس د خبرو وخت نه دی. زه ځم چې ژر ځان ور ورسوم.

**دوهمه برخه**

عبدالکبیر په بریالي پسې ځان را ورساوه. ورته وېې ویل: له مانه خو به **خپه** نه وې، چې لوبې دې په نیمایي کې پرېښودې؟
بریالي وویل: نه، نه، دا څه وایې. له مور سره مې **ژمنه** کړې وه چې **لوبې** به ورسره مینځم که ژر ځان ور نه رسوم، مور به مې بیا په خبرو باور نه کوي.
عبدالکبیر ورته وویل: او هوو! ښه شو چې ما ته دې هم را په یاد کړل. پلار مې راته ویلي وو چې ګلان به اوبه کوي.
بریالي وویل: بس نو دواړه به خپل خپل کارونه وکړو چې مور او پلار رانه خوشحاله شي.

**موضوع:** د حساب کتاب **توری: ب**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ب/ غږ پېژندل.
۲. د (ب ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ يې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه يي او بیا يې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **تکړه**(لایق)، **پیل** (شروع)، **ټولګیوال**(همصنفی)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره



ب

| کتاب | کـ تا ب |
|---|---|
| حساب | حـ سا ب |
| ثواب | ثـ وا ب |
| کباب | کـ با ب |

د حساب کتاب

ببرک او بریالي سره ټولګیوال دي. ببرک په حساب کې تکړه و. د بریالي حساب ته زړه و. له ببرک څخه يې پوښتنه وکړه، ته حساب څنګه زده کړې؟
ببرک ورته وویل: زه يې له ورور څخه زده کوم. بریالي هم له خور سره حساب پیل کړ. ورو ورو يې حساب زده شو. اوس په حساب ښه پوهېږي.

دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه يي او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: څوک په حساب کې تکړه و؟
ځواب: ببرک
۳. پوښتنه: بریالي حساب له چا څخه زده کړ؟
ځواب:له خور څخه.
۴. ذهني پوښتنه: له خلکو سره په مینه او محبت چلند څه ګټې لري.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې ۳ ځلې په کور کې ولولئ. ورځنۍ تمرینونه د تمرین په کتاب کې ترسره کړئ.

**موضوع:** د حساب کتاب او د مور او پلار حقونه **توري:** ب

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ب/ غږ پېژندل.
۲. د ( ب ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او غږیې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور پېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږیې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **بادام، تبر، مکتب**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي بیا په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. دلاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **هوښیار** (ځیرک)، **همزولی** (هم عمره)، **وارخطا** (اوتر).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله لاندینۍ پوښتنې وکړئ.
* بریالي به څه ځواب ورکړی وي؟



** د بریالي به څه کار وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: بریالي له چا سره لوبې کولې؟
ځواب: له عبدالکبیر سره.
۳. پوښتنه: بریالی څنګه هلک و؟
ځواب: هوښیار هلک و.
٤. ذهني پوښتنه: بریالی پر مور او پلار او خپلوانوولې ګران و؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه کلمې وروښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ور ته وواياست چې په کور کې به د دې کلمولیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** حضرت محمد (صلي الله عليه وسلم)    **توری: م**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / م/ غږ پېژندل.
۲. د (م) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاووډ کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د ویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **مینه**(محبت)، **تعلیم** (دعلم زده کول)، **پیغمبر** (د الله (ج) پیغام رسوونکی) .
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.




۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: زموږ پیغمبر څه نومېږي؟
ځواب: حضرت محمد صلي الله علیه وسلم.
۳. پوښتنه:زموږ پیغمبر له چا سره ډېره مینه کوله؟
ځواب:له ماشومانو سره.
۴. ذهني پوښتنه: یو له بل سره مینه کول څه ګټې لري؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** حضرت محمد (ص) او د مور او پلار حقونه    **توری:** م

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / م/ غږ پېژندل.
۲. د (م) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د/ م/غږ د کلمې په پیل منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تخته لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **موبایل، لیمو، قلم**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب(۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په انفرادي او جوړه یي ډول لولي.

### ٤. د اورېدلو د متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **خپه** (مرور)، **ژمنه** (وعده)، **لوښي** (ظرفونه).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه لاندینۍ پوښتنې وکړئ.



* د بریالي ځواب به څه وي؟
** عبدالکبیر به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: بریالي له مور سره د څه شي ژمنه کړې وه؟
ځواب: د لوښو د مینځلو.
۳. پوښتنه: عبدالکبیر ته پلار څه ویلي وو؟
ځواب: ګلان به اوبه کوې.
٤. ذهني پوښتنه: تاسې ولې له خپل مور او پلار سره مرسته کوئ؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع: د اونۍ تکرار** **توري:** ب،م

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ب/ او /م/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ب، م ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اوریدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورو پېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وايي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.

ځوابونه: **۱. حساب، ۲. زده شو، ۳. نومېږي، ٤ مهربانه.**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس یې وخت راغلی دی چې تاسې پخپله یوه کیسه جوړه کړئ.



۲. ورته و وایاست چې په خپل درسي کتاب کې دوو انځورونو ته وګوري. پوښتنه به ور څخه وکړئ چې د دې تصویرونو کیسې یې په یاد دي که نه؟
۳. دوو یا درو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې څه یې په یاد وي ویې وايي.
٤. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل د څنګ ملګري ته ووايي چې په کیسه کې یې کوم شی خوښ شوی دی او که دی د کیسې یو کرکټر وای، څه به یې کړي وو؟
۵. زده کوونکو ته ووايئ چې اوس به تاسې د یوې کیسې په باره کې یو څه ولیکئ.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ور ته و وایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او یوه جمله ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **له نورو سره د مینه او محبت لرلو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرې اونۍ تکرار او متداومه ارزونه **توري: ا،ل**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ا/ او/ل/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ا ، ل) تورو لوستل او لیکل.
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
۴. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي ورته اشاره کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ۴. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **بریالی** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **بر یا لی** دا کلمه ۳ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **خور، بنده ګان، ببرک، ورور، برکلی، حساب، کتاب.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **ببرک په حساب کې تکړه و.**
۶. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **ورو ورو یې حساب زده شو.**
- **زموږ پیغمبر حضرت محمد (ص) نومېږي.**
- **هغه ډېر مهربانه و.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.



### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**درېيمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** روغتيا **فرعي موضوع:** لاس مينځل، پاک خواړه **توري: و، د**

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پيل، منځ او پای کې د / و/ او/د/ غږونو پېژندل.
۲. د (و، د) تورو سم لوستل او ليکل(د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
۵. د **بې پروايي، تل، بوخت، کلينيک، تبه، صفا** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې وليکلای شي.
۸. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
۹. د (و،د) توري له نورو تورو سره سم ترکيب کړي او د کرسۍ خط پرمخ يې په ښايسته ډول مشق کړي.

**ټولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- د نورو خبرو او لاربښوونو ته پام وکړي.

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (و،د) تورو ترکيبي او ښايسته ليکل، مشق او تمرين کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقيقې)**

- له خو زده کوونکو څخه د تورو د ترکيبي او ښايسته ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې له کړکې يا پنسل قلم سره د (و،د) تورو ليکل په کورونو کې تمرين کړي.

## د دې اونۍ ځانګړې يادداشتونه

-د درس موخې او د ټولګي مقررات زده کوونکو ته تشريح کړئ.
-" زه يې تر سره کوم، موږ يې ترسره کوو، تاسې يې ترسره کوئ " له روش څخه په اړونده برخو کې کار واخلئ.
-زده کوونکو ته د درس هغه برخې چې ستونزه پکې لري، تکرار کړئ.
-له ځينو هڅوونکو کلمو، لکه: آفرين، ډېرښه، کولای شئ، مننه، سم کار دې وکړ او نورو په ويلو سره په ټولګي کې ښه ښوونيز چاپېريال رامنځ ته کړئ.
-زده کوونکي بايد له رواني پلوه وپېژنئ او د ستونزو په حل کې ورسره مرسته وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.
**د درس پيل (۵ دقيقې):** ښوونکی دې د هر درس په پيل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دويمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### بې پروايي

**لومړۍ برخه**

زه او مدينه خور مې د محمود هوتکي په دوهم ټولګي کې يو. موږ په کابل کې اوسېږو. کور **تل** صفا ساتو، د کور کارونه په ګډه کوو. مدينه په کارونو کې لا تکړه ده. هر کار ته يې بيړه وي. يوه ورځ يې مور ته وويل:* مورې! نن موږ د کور ښيښې **صفا** کوو.**
مور مې وويل: پام چې لاس ور نه وړئ. هوا ډېره سړه ده، ناروغه به شئ. کله چې هوا توده شوه، پاکې به يې کړئ. مدينې غلې ما ته وويل: ته صبر چې مور په کار **بوخته** شي، بيا به ګورو.

**دوهمه برخه**

مور مې په څه کار پسې ووته. مدينې ژر ژر په سطل کې اوبه واچولې. د ښيښو په پاکولو **لګيا** شوه. کله يې چې ښيښې په سړو اوبو ومينځلې، له يخه رېږدېده.*
ماښام د مدينې سخته تبه شوه، ژر مو **کلينيک** ته ورسوله، څو ورځې وروسته جوړه شوه. مدينې له ځان سره وويل ** چې بيا به بې **پروايي** نه کوي. مدام به د مور او پلار خبرې مني.

**موضوع:** لاس مینځل **توری:** و

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / و/ غږ پېژندل.
۲. د ( و ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **امان** (خوندي)، **وړاندې** ( مخکې)، **تشناب** ( د ځان مینځلو او رفع حاجت ځای).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.




۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: له ډوډۍ وړاندې او وروسته لاسونه په څه شي مینځو.
ځواب: په اوبو او صابون.
۳. پوښتنه: له تشناب وروسته څه باید وکړو؟
ځواب: باید لاسونه په اوبو او صابون ومینځو.
۴. ذهني پوښتنه: کله چې یو څوک تاسو ته د نظافت په اړه لارښوونې کوي، ولې یې لارښوونو ته ښه پام کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې ۳ ځلې په کور کې ولولئ. ورځنی تمرینونه د تمرین په کتاب کې ترسره کړئ.

**موضوع:** لاس مينځل او بې پروايي  **توري:** و

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /و/ غږ پېژندل.
۲. د (و) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او غږ ورته د/ و/ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ يې وايي.
د انځورونو نومونه: (**واوره، کور، اُتو**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه‌یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندينيو کلمو په هکله بحث وکړئ: **صفا** (پاک، ستره)، **تل** (هروخت)، **بوخته** (مصروفه).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو پر مهال د کيسې په هکله لاندينۍ پوښتنې وکړئ.
* مدينې به مور ته څه ویلي وي؟



** مور به یې څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: مدينې مور ته څه وويل؟
ځواب: موري، نن مور د کور ښيښې صفا کوو.
۳. پوښتنه: څوک د په کارونو کې تکړه وه؟
ځواب: مدینه په کارونو کې تکړه وه.
٤. ذهني پوښتنه: کله چې تاسو ته د کورنۍ مشران او یا بل څوک لارښوونې کوي، څه کوئ؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه کلمې وروښيئ چې باید د تمرین په کتاب کې يې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعاليت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې وليکي.

**موضوع:** پاک خواړه **توری:** د

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د / دا/ غږ پېژندل.
۲. د (د ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د ویم متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **صبر** ( حوصله)، **نس**(خېټه)، **ناپاک** ( مینځل شوی نه وي، ناولی).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره




دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که خنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: فریدې مېوه چېرته وړله؟
ځواب:مینځلو ته.
۳. پوښتنه: چا ناپاکه مېوه خوړلې وه؟
ځواب: وحیدې
٤. پوښتنه: ځنګه کولای شو په لاربنوونو خپل ځانونه ښه پوه کړو لکه په کیسه کې د مور او فریدې لارښوونې؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** بې پروايي او پاک خواړه **توری د**



### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / د / غږ پېژندل.
۲. د ( د ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / د / غږ د کلمې په پیل منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ يې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **درمل، ګلداني، سیند**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا يې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو فعالیت (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **کلینیک**(هغه ځای ته وايي چې ناروغ ته درمل ورکول کېږي خو بستر نه لري) ، **لګیا** (بوخت)، **بې پروايي**(پروا نه کول، بې باکي)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پرمهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکوڅخه د کیسې په هکله لاندې پوښتنې وکړئ.

*. په مدینه به څه شوي وي؟
**. مدینې به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: په مدینې څه وشول؟
ځواب: د مدینې سخته تبه شوه.
۳. پوښتنه: مدینې له ځان سره څه وویل؟
ځواب: ویې ویل چې بیا به بې پروايي نه کوي.
٤. ذهني پوښتنه: که تاسو د مدینې پر ځای وای، څه به مو کړي وای چې په زوکام او تبې اخته نه شئ؟

**۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښيئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې يې تمرین کړي.
۲. دا جملې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي د دې توري او جملې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** و، د

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د/و/ او /د/ غږونو پېژندل.
۲. د (و ، د) تورو لوستل او ليکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معيار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)
۵. د يوې لنډې کيسې ليکل (رسمول، د کلمو او جملو ليکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه يې د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تخته ليکي، اشاره ورته کوي او غږونه يې وايي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله خرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بيا يې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. مرضونو، ۲. تشنابه، ۳. مېوه ، ٤. نس**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقيقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته و واياست چې د تېرې ورځې د کيسې په باره کې فکر وکړي چې کيسه د څه په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه يي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای لولي.
۴. زده کوونکي يې په جوړه يي ډول لولي.
۵. زده کوونکي يې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي ليکل (۱۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کيسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کيسو په اړه يې څه په ياد پاتې دي.
۳. دوو يا دريو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه يې چې په ياد پاتې دي، نورو ته يې ووايي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه يې چې د کيسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګيوالو ته و وايي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کيسې کرکټر وای، څه به يې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په يوه جمله کې نورو ته ووايي او پر تختې يې وليکي.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کيسو په اړه ليکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کيسو په اړه يو انځور رسم کړي او يوه جمله ورته وليکي. ورته وواياست چې کيسه دې **د بل چا خبرو او لار ښوونو ته د پام کولو** په اړه وليکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه يې ليکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتيا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقيقې وروسته له ځينو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کيسې نورو ته ووايي.



### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې يې څو کلمې او جملې وليکي.

موضوع: د تېرو اونیو تکراراومتداومه ارزونه    توري: ا، ل، ب، م

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ا،ل،ب،م/غږونو پېژندل.
٢. د (ا،ل،ب،م) تورو لوستل او لیکل
٣. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ٩٥٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ٩٠٪).
٥. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ٩٠٪).

### ١. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

١. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
٢. ښوونکی د تورو بڼې پر تختې لیکي ورته اشاره کوي او غږونه یې وایي.

### ٢. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

١. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ٣. د لوستلو دویم متن تکرار (١٠ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

١. زده کوونکو ته و وایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

#### د لوستلو پر مهال

١. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
٢. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
٣. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ٤. املا (١٥ دقیقې)

١. زده کوونکو ته وواییٔ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.

٢. زده کوونکوته و وایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.

٣. ورته وواییٔ چې د **ډوډۍ** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **ډو ډۍ** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته وواییٔ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

۴. همدغه کار د لاندې(۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ:
**مور، صابون، روغ، وروسته، مرض، وړاندې، استاد.**

۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **له ډوډۍ وروسته، له ډوډۍ وړاندې.**

٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.

٧. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **لاسونه مینځئ، په صابون باندې.**
- **فریدې میوه مینځلوته وړله.**
- **داوود ورته وویل: ما ته لږ انګور راکړه.**

٨. زده کوونکو ته وواییٔ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.

٩. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.



### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**ځلورمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** کورنۍ **فرعي موضوع:** د مور خدمت **توري:** آ، س

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پيل، منځ او پای کې د / آ / او / س / غږونو پېژندل.
۲. د ( آ، س) تورو سم لوستل او ليکل (د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ۱٦ کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل(د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
۵. د **خدمت، کپتان، مسواک، ششنبدل، ثواب، روغتيا** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې وليکلای شي.
۸. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
۹. د (آ،س) توري له نورو تورو سره سم ترکيب کړي او د کرسي خط پرمخ يې په ښايسته ډول مشق کړي.

**ټولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- له خپلو کورنيو سره مرسته وکړي.

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

ښوونکی دې له زده‌کوونکو سره د (آ،س) تورو ترکيبي او ښايسته ليکل، مشق او تمرين کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقيقې)**

- له څو زده‌کوونکو څخه د تورو د ترکيبي او ښايسته ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده‌کوونکي دې له کرکې يا پنسل قلم سره د (آ،س) تورو ليکل په کورونو کې تمرين کړي.

**د دې اونۍ ځانګړې يادداشتونه**

-د درس موخې او د ټولګي مقررات زده‌کوونکو ته تشريح کړئ.
-" زه يې تر سره کوم، موږيې ترسره کوو، تاسې يې ترسره کوئ " له روش څخه په اړونده برخو کې کار واخلئ.
-زده‌کوونکو ته د درس هغه برخې چې ستونزه پکې لري، تکرار کړئ.
-له ځينو هڅوونکو کلمو، لکه: آفرين، ډېرښه، کولای شئ، مننه، سم کار دې وکړ او نورو په ويلو سره په ټولګي کې ښه ښوونيز چاپېريال رامنځ ته کړئ.
-زده‌کوونکي بايد له رواني پلوه وپېژنئ او د ستونزو په حل کې ورسره مرسته وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده‌کوونکي وارزوئ.
**د درس پيل (۵ دقيقې):** ښوونکی دې د هر درس په پيل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دويمې او ځلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**د مور خدمت**

**لومړۍ برخه**

ښوونکی ټولګي ته را ننوت. **کپتان** وويل: ولاړشئ، شاګردان پر خپلو ځايونو ودرېدل. ښوونکي وويل: السلام عليکم، کښېنئ.
څو شيبې وروسته صابر له ښوونکي اجازه واخيسته، ټولګي ته راننوت. ښوونکي پوښتنه وکړه،* صابر جانه! ولې ټولګي ته يو څه وختي نه راځې؟** صابر وويل: زه هره ورځ په خپل وخت راځم، خو نن لږ **نا وخته** شو. ښوونکي وويل: **خير** خو به و؟

**دوهمه برخه**

صابر وويل:* مور مې ناروغه ده، د کور کارونه مور ته را په غاړه دي. خور مې چای او ډوډۍ تياروي. زه اوبه راوړم او مور ته مې **دارو** ورکوم. ډاکټر ويلي چې دارو به يې په خپل وخت ورکوئ. اوس شکر دی، مخ په ښه کېدو ده. معلم صاحب وويل:** شکر دی چې مخ په ښه کېدو ده. خدای دې يې روغه کړي. آفرين صابرجانه! چې تاسو هم د مور او پلار خدمت کوئ او هم د کور په کارونو کې مرسته کوئ. د مور او پلار **خدمت** د **ثواب** کار دی او الله ﷻ پرې خوشحالېږي.

**موضوع: آس** **توری: آ**


۴ اونۍ ۱ لوست

| آذان | آ ذان |
| --- | --- |
| آفرین | آ فرین |
| آرام | آ رام |
| آسونه | آ سو نه |

آس

آصف ګلانو ته اوبه ورې آس وشنښېده، په اوبو پسې یې زور وکړ. آصف وویل اوهو! آس تږی دی اوبه یې ورته کېښودې آس اوبه وڅښلې او آرام شو آصف پلار ته کیسه وکړه. د هغه پلار آدم خان وویل آفرین زویه! هیر مې و چې آس ته اوبه کېږدم

۱۹

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / آ / غږ پېژندل.
۲. د ( آ ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته ور وپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یو ځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ **شنښېدل** (د آس آواز)، **آرام** (چوپ، کرار)، **هېر** (له یاده وتل).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: چا آس ته اوبه ورکړې؟
ځواب: آصف
۳. پوښتنه: آصف چا ته کیسه وکړه؟
ځواب: خپل پلار ته.
٤. ذهني پوښتنه: تاسو له مور او پلار سره په کومو کارونو کې مرسته کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې ۳ ځلې په کور کې ولولئ. ورځني تمرینونه د تمرین په کتاب کې سرته ورسوئ.

**موضوع:** آس او د مور خدمت    **توری:** آ

### د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / آ / غږ پېژندل.
۲. د ( آ )توري لوستل او لیکل.
۳. له توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)
۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /آ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې له زده کوونکو ته ور پېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: **( آذان، شفتالو، حُسنا)**

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب(۵دقیقې)
۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)
۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ٤. د اورېدو متن لومړۍ برخه(۱۰ دقیقې)
**له اورېدلو مخکې**
۱. دلاندېنیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **کپتان**(مشر)، **ناوخته** (دوختي ضد کلمه ده)، **خیر**(ښه، ښېګڼه).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟
**د اورېدلو پر مهال**
۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله لاندینۍ پوښتنې وکړئ.



* ښوونکي به ور څخه څه پوښتلي وي؟
** صابر به څه ځواب ورکړی وي؟
**له اورېدلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: ښوونکي له صابر څخه څه پوښتنه وکړه؟
ځواب: ولې ټولګي ته لږ وختي نه راځې؟
۳. پوښتنه: صابر څه ځواب ورکړ؟
ځواب: زه هره ورځ په خپل وخت راځم خو نن لږ ناوخته شو.
٤. ذهني پوښتنه: د صابر د ناوخته راتلو کوم دلیلونه دي چې کېدای شي معلم هغه ته بخښنه وکړي او اجازه ورکړي؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)
۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه کلمې ورو ښیئ چې د تمرین په کتاب کې یې باید تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** د غاښونو مينځل **توري: س**

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پيل کې د /س/ غږ پېژندل.
٢. د (س) توري لوستل او ليکل.
٣. له توري سره د ۴ کلمو ترکيبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

### ١. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

١. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ يې زده کوونکو ته ورو پېژنئ.
٢. زده کوونکي دې ځينې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پيل کېږي.
٣. ښوونکی توری پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۴. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

### ٢. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)

١. د ترکيب د تمرين د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

### ٣. د لوستلو دويم متن (۲۵ دقيقې)

**له لوستلو مخکې**

١. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **برس** (د غاښونو پاکولو اله ده)، **مسواک** (د يوې خاصې ونې رېښه او لښتې چې غاښونه پرې صفا کېږي)، **روغتيا** (صحت).
٢. بيا زده کوونکو ته و وايئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
٣. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.


۴ اونۍ ۳ لوست

س

| | |
|---|---|
| او قس | اوقس |
| الـ ماس | الماس |
| ګـ يلاس | ګيلاس |
| برس | برس |

د غاښونو مينځل

نسيمه سهار، غرمه او ماښام غاښونه مينځي

د هغې غاښونه سپين او صفا دي که غاښونه ونه مينځل شي، خرابيږي

ناپاک غاښونه روغتيا ته زيان رسوي هر څوک بايد خامخا خپل برس يا مسواک ولري پاک او صفا غاښونه ډېر عمر کوي

۲۱

٢. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي متن په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په يوازې او جوړه يي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

١. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
٢. پوښتنه: نسيمه څه وخت خپل غاښونه مينځي؟
ځواب: هر سهار، غرمه، ماښام.
٣. پوښتنه: غاښونه په څه شي بايد ومينځل شي؟
ځواب: په برس يا مسواک.
٤. ذهني پوښتنه: تاسو له خپلې کوچنۍ خور يا ورور سره څه مرسته کولی شئ چې روغ او سالم غاښونه ولري؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

١. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د ترکيب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**موضوع :** د غاښونو مينځل او د مور خدمت  **توري: س**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /س/ غږ اورېدل.
۲. د (س) توري لوستل او ليکل.
۳. له توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /س/ غږ د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **ساعت**، **پسه**، **بکس**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)

۱. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دويم متن تکرار (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په يوازې او جوړه يي ډول لولي

### ۴. د اورېدلو فعاليت (۱۰ دقيقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د دغو کلمو په هکله بحث وکړئ: **خدمت**(داسې کار چې نورو ته يې ګټه رسېږي)، **ثواب**(د خير ښېګڼې کارونه)، **دارو**(درمل).
۲. بيا زده کوونکو ته و وايئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱. کيسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه لاندينۍ پوښتنې وکړئ.



* صابر به څه ويلي وي؟
** استاد به څه ويلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: پر صابر ولې ناوخته شوی و؟
ځواب: موريې ناروغه وه، دوی د کور کارونه کول.
۳. پوښتنه: د مور او پلار خدمت څه ګټې لري؟
ځواب: ثواب لري او الله (ج) پرې خوشالېږي.
٤. ذهني پوښتنه: له خپلې کورنۍ سره مرسته کول څه ګټې لري؟

### ۵. د جملو سم ليکل (۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته و واياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعاليت ولري. هغه جملې ورته وښيئ چې بايد د خپل تمرين په کتاب کې يې تمرين کړي.
۲. دا جملې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې جملو ليکل په همدې **اونۍ کې** تمرين کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې توري او جملې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** آ، س

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /آ/ او /س/ غږونو پېژندل.
۲. د (آ / س) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا یې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.

ځوابونه: **۱. وششنبېده، ۲. زویه، ۳. صفا، ٤ ډېر.**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوه زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یې ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یې ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو



کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا درېیو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته ووايي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په یوه جمله کې نورو ته ووايي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او یوه جمله ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **له خپلو کورنیو سره د مرستې کولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووايي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونيو تکرار او متداوم ارزونه **توري: ب، م، و، د**

**د زده کړې موخې**

١. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د ب، م، و، د غږونو پېژندل.
٢. د (ب، م، و، د) تورو لوستل او ليکل
٣. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معيار ٩٥٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معيار ٩٠٪).
٥. د کلمو او جملو سم ليکل (د سموالي معيار ٩٠٪).

**١. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او ليکل (٥ دقيقې)**

١. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه يې د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکوته وروپېژنئ.
٢. ښوونکی د توري بڼې پر تختې ليکي ورته اشاره کوي او غږونه يې وايي.

**٢. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (٥ دقيقې)**

١. د هجاوو د تمرين د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يې او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**٣. د لوستلو دويم متن تکرار (١٠ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کيسې په اړه فکر وکړي چې کيسه د څه په هکله وه؟ يوه يا دوه زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
٢. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای لولي.
٣. زده کوونکي متن جوړه يي لولي.
۴. زده کوونکي متن يوازې لولي.

**٤. املا (١٥ دقيقې)**

١. زده کوونکوته ووايئ چې نن به ځينې کلمې او جملې وليکي.
٢. زده کوونکوته ووايئ چې درسي کتاب بند او د تمرين کتاب خلاص کړي.
٣. ورته ووايئ چې د **آدم** کلمه ولولي او هجاوي يې د لاسونو په حرکتونو سره ببلې کړي. **آ دم** دا کلمه ۲ هجاوي لري. زده کوونکو ته ووايئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري يې د تمرين په کتاب کې وليکي.



۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **آس، تري، آصف، آزادي، آذان، آسمان، آفرين.**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله يې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **آس وشښنېده.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.
٧. دا کار د لاندې دريو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **آفرين زويه! هېر مې و چې آس ته اوبه کېږدم.**
- **د هغې غاښونه سپين او صفا دي.**
- **پاک او صفا غاښونه ډېر عمر کوي.**

**٨.** زده کوونکو ته ووايئ چې د تمرين کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
٩. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقيقې)**

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نيمګړې جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**پنځمې اونۍ ته کتنه موضوع:** روغتیا **فرعي موضوع:** ولاړې اوبه **توري: ا، ل، ب، م، و، د**

### د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د / ا،ب، ل،م، و، د آ، س/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ا،ب، ل،م، و، د آ، س) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل(د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **ملګرې، کولمې، حجره، کنده، خوسا، معاینات** کلمو په معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې به سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ا،ل،ب،م،و،د) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- په سختیو او ستونزو کې له خپلو ملګرو سره مرسته وکړي.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ا،ل،م،و،د) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کړکي یا پنسل قلم سره د (ا،ل،ب،م،و،د) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

### د دې اونۍ ځانګړې یاداشتونه

-د درس موخې او د ټولګي مقررات زده کوونکو ته تشریح کړئ.
-" زه یې تر سره کوم، موږیې ترسره کوو، تاسې یې ترسره کوئ " له روش څخه په اړونده برخو کې کار واخلئ.
-زده کوونکو ته د درس هغه برخې چې ستونزه پکې لري، تکرار کړئ.
-له ځینو هڅوونکو کلمو، لکه: آفرین، ډېرښه، کولای شئ، مننه، سم کار دې وکړ او نورو په ویلو سره په ټولګي کې ښه ښوونیز چاپېریال رامنځ ته کړئ.
-زده کوونکي باید له رواني پلوه وپېژنئ او د ستونزو په حل کې ورسره مرسته وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.
**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

### د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

**ولاړې اوبه**

**لومړۍ برخه**

د احمد مشر ورور جلیل ټراکټور لري. په ټراکټور د خلکو ځمکې جوړوي. یو وخت یې د خپلې **حجرې** د جوړولو لپاره د کلي له میدان څخه خاوره راوړه. په میدان کې لویه **کنده** جوړه شوه.* په کنده کې د لښتیو او باران اوبه راټولې شوې. څه موده وروسته اوبه **خوسا** شوې. احمد یوه ورځ په دې اوبو کې ولمبل او ناروغه شو. جلیل چې د احمد له ناروغۍ خبر شو، بې له ځنډه یې ډاکټر ته یووړ. ډاکټر چې وکوت، لابراتوري معاینات یې ورته ولیکل. جلیل له ډاکټر څخه د احمد د ناروغۍ پوښتنه وکړه؟ ډاکټر ورته وویل:** په معایناتو کې به معلومه شي.

**دوهمه برخه**

ډاکټر د احمد د **معایناتو نتیجه** وکتله. له احمد او جلیل څخه یې هم پوښتنې وکړې. ډاکټر ته معلومه شوه* چې د دوی په کلي کې د خوسا اوبو ډنډ دی. ډاکټر جلیل او احمد ته وویل: احمده! بیا په چټلو او ولاړو اوبو کې و نه لامبې. دغه ډنډ باید وچ او له خاورو ډک شي. ډاکټر احمد ته درمل ورکړل او ویې ویل:* څوک چې پاک خواړه خوري، پاکې اوبه څښي او کلی کور پاک ساتي، ډېر به نه ناروغه کېږي.**
جلیل د خوسا اوبو ډنډ ته په ټراکټور کې خاورې راوړې. ډنډ یې ډک کړ،کلیوا ل یې له دې **ستونزې** خلاص کړل.

**موضوع:** فیل او مورک　　**توري:** ا، ل

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د /ا/ او /ل/ غږونه پېژندل.
۲. د (ا ، ل ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ او رېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ملګري** (دوستان)، **خواړه** (د خوراک شیان)، **بیزو** (شادي).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره


فیل او مورک
فیل او مورک ملګري وو. فیل غټ و، خوراک یې هم ډېر و. یوه ورځ مورک ډېر خواړه وخوړل ناروغه شو. فیل بیزو ته ورورست بیزو درمل ورکړل په خندا یې ورته وویل خوراک په اندازه کوه، د فیل خوراک د فیل کولمې غواړي.

دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: څوک سره ملګري وو؟
　ځواب: فیل او مورک.
۳. پوښتنه: مورک ولې ناروغه شو؟
　ځواب: ډېر خواړه یې خوړلي و.
۴. ذهني پوښتنه: که ستاسو ملګري ناروغه شي، څه ډول مرسته به ورسره وکړې؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توري او نوي غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې ۳ ځلې په کور کې ولولئ. ورځني تمرینونه د تمرین په کتاب کې ترسره کړئ.

**موضوع:** فیل او موږک او ولاړې اوبه **توري: ب،م**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ب، م/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ب، م ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ب، م/ غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توري د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **بادام، تبر، مکتب، موبایل، لیمو، قلم**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دي دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ٤. د اورېدو د متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ : **حجره** (د مېلمنو کوټه)، **کنده** ( ژور ځای)، **خوسا** (ګنده).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله لاندینۍ پوښتنې وکړئ.



* په کنده به څه شوي وي؟
** ډاکټر به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: کیسه د څه شي په اړه وه؟
ځواب: د ولاړو اوبو په هکله.
۳. پوښتنه: احمد په څه ډول اوبو کې لمبل؟
ځواب: په خوسا اوبو کې.
٤. ذهني پوښتنه: ستاسو په سیمه کې خلک له څه شي په تکلیف دي او تاسې څه ورسره کولی شئ؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه کلمې وروښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته و وایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** ټوکه **توري:** و، د

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د /و/ او /د/ غږونو پېژندل.
۲. د (و ، د) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده‌کوونکو ته ور وپېژنئ.
۲. زده‌کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توري پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده‌کوونکي دا توري د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده‌کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده‌کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **بې کاره** (خوشې)، **ټوکه** (خندوونکې کیسه)، **وشڼېده** (د آس اواز).
۲. بیا زده‌کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده‌کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده‌کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده‌کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده‌کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده‌کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده‌کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: توریالی د بریالي څه دی؟
ځواب: ورور یې دی.
۳. پوښتنه: آس ولې وشڼېده؟
ځواب: په بریالي پورې یې خندل.
۴. ذهني پوښتنه: که مو ملګری درس نه وایي، څنګه یې درس ویلو ته هڅولی شئ؟


۵ اونۍ ۳ لوست
و و و
د د د
ټوکه
بریالی او توریالی ورونه دي
توریالی په باغچه کې ناست و
درس یې لوستلو خو بریالی
بې‌کاره ګرځېده. په دې وخت
کې آس وشڼېده
بریالي پوښتنه وکړه
دا آس ولې وشڼېږي؟
توریالي په خندا وویل په تا
پورې خاندي ځکه چې درس نه
وایې.
۲۷

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او غږ له زده‌کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع :** ټوکه او ولاړې اوبه **توري: آ،س**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /آ، س/ غږونو پېژندل.
۲. د (آ ، س ) تورو لوستل او ليکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /آ، س/ غږونه د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بيا، زده کوونکي دا توري د تمرين په کتاب کې ليکي او غږونه يې وايي.
د انځورونو نمونه: ( **آذان، شفتالو، حُسنا، ساعت، پسه، بکس**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵دقيقې)**

۱. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دويم متن تکرار (۱۰ دقيقې)**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په يوازې او جوړه يي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو فعاليت (۱۰ دقيقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندينيو کلمو په هکله بحث وکړئ: **نتيجه** (پايله)، **ستونزه** (مشکل)، **معاينات** (د ناروغی معلومول)
۲. بيا زده کوونکو ته و وايئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کيسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه لاندينۍ



پوښتنې وکړئ.
* ډاکټر ته به څه شی معلوم شوی وي؟
** جليل به په ډنډ څه کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: چا ډنډ ډک کړ؟
ځواب: جليل
۳. پوښتنه: ډاکټر د ډنډ په باره کې څه وويل؟
ځواب: دغه ډنډ بايد وچ او له خاورو ډک شي.
۴. ذهني پوښتنه: ستاسو په نظر، د ډنډ په ډکولو سره به د خلکو کومې ستونزې حل شوې وي؟

**۵. د جملو سم ليکل (۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته و واياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعاليت ولري. هغه جملې ورته وښيئ چې بايد د خپل تمرين په کتاب کې يې تمرين کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته و واياست چې په کور کې به د دې جملو ليکل په همدې **اونۍ کې** تمرين کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي د دې توري او جملې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري: ا، ل ب، م**

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ ا، ل، ب، م / غږونو پېژندل.

۲. د (ا، ل، ب، م) تورو لوستل او لیکل.

۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)

٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.

۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وايي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.

۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.

ځوابونه: **۱. ملګري، ۲. کوه، ۳. باغچه، ٤ ششنبړي.**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

#### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.

۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.

۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.

۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.

۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.



### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.

۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسی کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوندو کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.

۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.

۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته ووايي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟

۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په یوه جمله کې نورو ته ووايي او پر تختې یې ولیکي.

٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او یوه جمله ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **د هغو ملګرو په اړه چې له ستونزو سره مخ وي**، ولیکي.

۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.

۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووايي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.

۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونيو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** و، د، آ، س

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د/و، د، آ، س/ غږونو پېژندل.
۲. د (و، د، آ، س) تورو لوستل او ليکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معيار ۹۵٪).
۴. د متن سم لوستل (د سموالي معيار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم ليکل (د سموالي معيار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو پېژندل، د غږونو او تورو تر منځ اړيکې (۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې اوس به د غږونو او تورو د پېژندلو تمرين ترسره کړو.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې مو د تورو چوکاټ ته وګورئ. په چوکات کې هره کرښه يوه شمېره لري. زه به لومړی د کرښې شمېره وايم، بيا به د هماغه کرښې د يوه توري غږ وايم. تاسو له هماغه توري حلقه تاو کړئ. ښوونکی له زده کوونکو سره يو مثال تر سره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين کتابونه مو را واخلئ. ښوونکی په لومړۍ کرښه کې د /و/ غږ وايي او زده کوونکي د (و) له توري څخه حلقه تاووي. ښوونکی او زده کوونکي دې همدا کار په نورو کرښو کې د لاندې غږونو لپاره ترسره کړي.
**غږونه:** ۲. /آ/ ۳. /ل/ ۴. /ا/ ۵. /س/ ۶. /د/ ۷. /م/ ۸. /ب/
۴. په پای کې ښوونکی د زده کوونکو د تمرين کتابونه ګوري او نومرې يې د دوامداري ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### ۲. د آشنا کلمو پيدا کول (۵ دقيقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې اوس به د آشنا کلمو د پيدا کولو تمرين ترسره کړو.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې مو ځينې انځورونه وينئ. د هر انځور لاندې څلور کلمې ليکل شوې دي. تاسو به د هر انځور لاندې له هغې کلمې څخه حلقه تاووئ چې د هماغه انځور نوم دی. ښوونکی له زده کوونکو سره يو مثال ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وايي چې د تمرين کتابونه مو را واخلئ او د هر انځور لاندې اړونده کلمه په نښه کړئ.
**سمې کلمې:** ۱. کېله ۲. لمر ۳. ساعت ۴. بادام ۵. دوا ۶. انار
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره چې ستونزې لري، مرسته کوي.

### ۳. د لوستلو د دوهم متن تکرار (۱۰ دقيقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د تېرې ورځې د کيسې په اړه فکر وکړي چې کيسه د څه په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه يي لولي.
۴. زده کوونکي متن يوازې لولي.

### ۴. املا (۱۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته ووايئ چې نن به ځينې کلمې او جملې وليکي.



۲. زده کوونکو ته ووايئ چې درسي کتاب بند او د تمرين کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووايئ چې د **خواږه** کلمه ولولي او هجاوې يې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **خوا ړه** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووايئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري يې د تمرين په کتاب کې وليکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **ناروغ، خندا، فيل، موږک، راوړل، بيزو، خواراک.**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله يې په کراره تکرار کړئ. جمله داده:
**فيل او موږک سره ملګري وو.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.
۷. دا کار د لاندې دريو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **خوراک په اندازه کوه.**
- **توريالی په باغچه کې ناست و.**
- **دا آس ولې شنشېږي؟**

۸. زده کوونکو ته ووايئ چې د تمرين کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامداري ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نيمګړې جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**شپږمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** ټولن **فرعي موضوع:** ښېګڼه **توري:** ی، ت

**د اونۍ زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د / ی / ت / غږونو پېژندل.
۲. د ( ی ، ت ) تورو سم لوستل او لیکل(د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل(د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **کال، فصل، میاشت، ښېګڼه، ټوټه، روغتون** کلمو په معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ی،ت) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- هغه لارې چارې وکاروي چې د خفګان په وخت کې خپل ځانونه پرې خوشحاله کړي

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ی،ت) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې له کرکې یا پنسل قلم سره د (ی،ت) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

**د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه**

- له لومړۍ اونۍ څخه تر پنځمې اونۍ پورې لارښوونې او سپارښتنې په نورو اونیو کې هم په پام کې ونیسئ.
- هغه زده کوونکي چې په درس کې لایق وي له هغو زده کوونکو سره چې په درس کې ستونزې لري، مرسته وکړي.
- زده کوونکي دې نوو جملو ته غوږ ونیسي او د لاسونو په حرکتونو سره دې کلمې وشمېري.
- په منظمه توګه په ټولو اونیو کې د هرې ورځې د درس په پای کې زده کوونکي وارزوئ او کورنۍ دنده ورته تشریح کړئ.
- د درس موخې او د ټولګي مقررات زده کوونکو ته تشریح کړئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**ښېګڼه**

**لومړۍ برخه**

یما او تلوسه خور او ورور دي. یما په لومړي او تلوسه په دویم ټولګي کې ده. دوی په کلي کې اوسېږي. پر خپل وخت ښوونځي ته ځي او پر خپل وخت کور ته راځي.

نن د یما او تلوسې مور او پلار **پرېشانه** وو. * د مکتب د رخصتۍ وخت تېر شوی و. خو یما او تلوسه لا کور ته نه وو راغلي. مور یې ډېره خپه او **وارخطا** وه. وایي هسې نه چې خدای مه کړه، کومه پېښه شوې وي. د **اولادونو** پلار ته یې وویل:** باید پسې ولاړ شي او د ماشومانو خبر واخلي.

**دوهمه برخه**

ښه ګرانو ماشومانو! اوس به راشو دې ته چې یما او تلوسه له مکتب نه د راتلو په وخت کې له کومې پېښې سره مخ شول؟ خبره داسې ده چې په لاره کې د یوې نجلۍ پښه له تیږې سره ولګېده. خوارکۍ ژوبله شوه. تلوسې یما ته وویل: دا خو زموږ د **ګاونډي** لور ده.* تلوسې په پاکه ټوټه د نجلۍ خوږ پښه وتړله. له یوه لاس نه یما او له بل نه تلوسې ونیوه. نجلۍ یې چې تر کوره ورسوله، خپل کور ته راغلل. مور او پلار ته یې د پېښې کیسه وکړه. بخښنه یې ترې وغوښته چې پرېشانه کړي یې وو.** خو مور او پلار یې ډېر خوشحاله شول چې زوی او لور یې له خپلې ګاونډۍ سره **ښېګڼه** او **مرسته** کړې ده.

**موضوع:** د کال فصلونه **توری:** ی

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ی/ غږ پېژندل.

۲. د ( ی ) توري لوستل او لیکل.

۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.

۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.

۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.

۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.

۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.

۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. ددې کلمو په هکله بحث وکړئ: **کال، فصل، میاشت.**

۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.

۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.

۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.

۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره




دا متن زده کوونکو ته ولولي.

۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.

۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه

۲. پوښتنه: یما له یعقوب څخه څه وپوښتل؟

ځواب: یو کال څو فصله دي؟

۳. پوښتنه: د کال فصلونه څه نومېږي؟

ځواب: پسرلی، اوړی، منی، ژمی.

۴. ذهني پوښتنه: د کال کوم فصل د تاسو ډېر خوښېږي او ولې؟

**تکرار او کورنی دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.

۲. **کورنی دنده:** د ترکیب کلمې ۳ ځلې په کور کې ولولئ. ورځنې تمرینونه د تمرین په کتاب کې ترسره کړئ.

**موضوع:** د کال فصلونه او ښېګڼه **توری: ی**



**د زده کړې موخې**
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ی/ غږ پېژندل.
۲. د (ی) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**
۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د ی/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې له زده کوونکو ته ور پېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نمونه: ( **یوم، ګیدړ، منګی**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**
۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**
۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)**
**له اورېدلو مخکې**
۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **اولادونه**(بچیان)، **پرېشانه** (په اندېښنه کې) ، **وارخطا** (اوتر).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟
**د اورېدلو پر مهال**
۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله لاندینۍ پوښتنې وکړئ.

* ولې به پرېشانه وي؟
** څه به یې ویلي وي

**له اورېدلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: تلوسه د یما څه وه؟
ځواب: خور یې وه.
۳. پوښتنه: تلوسه په څووم ټولګي کې وه؟
ځواب: په دویم ټولګي کې.
٤. ذهني پوښتنه: که تاسو د یما او تلوسې د مور پر ځای وای، څه احساس به مو کاوه؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)**
۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه کلمې وروښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**
۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** د غابښونو ساتنه — **توري: ت**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د / ت/ غږ پېژندل.
۲. د ( ت ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)




### ۱. د غږ اوریدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې و وایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ **روغتون** (د ناروغانو د علاج ځای)، **درمل** (دارو، دوايي)، **کلک** (سخت، ټینګ)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: تلوسې په غابښونو څه مات کړي وو؟
ځواب: بادام.
۳. پوښتنه: چا تلوسه روغتون ته بوتله؟
ځواب: پلار يې.
۴. ذهني پوښتنه: کله چې روغ بدن او روغ غابښونه ولرئ، څه احساس کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع : ښېګڼه** **توري: ت**

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ت/ غږ پېژندل.
۲. د ( ت ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ت/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **تله**، **کتاب**، **ساعت**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دوېیم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو فعالیت (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ښېګڼه** (نیکي)، **مرسته** (کومک، لاسنیوی)، **ګاونډی** (همسایه).
۲. بیا زده کوونکو ته وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه لاندینۍ پوښتنې وکړئ.



* یما او تلوسې به څه کړي وي؟
** مور او پلار به یې څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: تلوسې یما ته څه وویل؟
ځواب: دا خو زموږ د ګاونډي لور ده.
۳. پوښتنه: تلوسې او یما د پېښې کیسه چا ته وکړه؟
ځواب: مور او پلار ته.
٤. ذهني پوښتنه: که یو څوک خپه او وارخطا وي، څنګه تسلي ورکولای شئ؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته و وایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### بیاکتنه او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې توري او جملې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع: د اونۍ تکرار          توري: ی، ت**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ی/ او /ت/ غږونو پېژندل.
۲. د (ی، ت) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورو پېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله ځرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.

ځوابونه: **۱. فصله، ۲. درې، ۳. غابښونو، ٤. شو.**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یې ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یې ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته و وایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته ووایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په دوو جملو کې نورو ته و وایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او دوې جملې ورته ولیکي. ورته و وایاست چې کیسه دې **د بل چا پر احساس د پوهېدو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. زده کوونکي دې خانه خالي جملې په مناسبو کلمو سره بشپړې کړي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري: و، د، آ، س**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /و، د، آ، س/ غږونو پېژندل.
۲. د ( و، د، آ، س) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
۴. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي ورته اشاره کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ۴. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **یما** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **یـ ـما** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.



۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **یوه، ګاوندی، وویل، اونۍ، دوی، یعقوب، فصل**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **یو کال څلور فصله دي.**
۶. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **هر فصل درې میاشتې دي.**
- **تلوسې په غاښونو بادام ماتول.**
- **غاښ یې خوږ شو.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقه

**اوومې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** چاپېریال **فرعي موضوع:** ښکلې ولسوالي **توري:** ر، پ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ر/ او /پ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ر، پ) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **مشوره، مشران، آزار، اشر، صفایي، آزادي** کلمو په معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ر، پ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- د ټولنې ارزښت بیان کړي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ر،پ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکي یا پنسل قلم سره د (ر، پ) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

**د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه**

- له لومړۍ اونۍ څخه تر پنځمې اونۍ پورې لارښوونې او سپارښتنې په نورو اونیو کې هم په پام کې ونیسئ.
- هغه زده کوونکي دې چې په درس کې لایق وي له هغو زده کوونکو سره چې په درس کې ستونزې لري، مرسته وکړي.
- زده کوونکي نوو جملو ته غوږ ونیسي او د لاسونو په حرکتونو سره دې کلمې وشمېري.
- په منظمه توګه په ټولو اونیو کې د هرې ورځې د درس په پای کې زده کوونکي وارزوئ او کورنۍ دنده ورته تشریح کړئ.
- د درس موخې او د ټولګي مقررات زده کوونکو ته تشریح کړئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**ښکلې ولسوالي**

**لومړۍ برخه**

د عبدالرحیم کورنۍ د هېواد په یوه ښکلې ولسوالۍ کې اوسېده. عبدالرحیم او مېرمن یې په یوه ښوونځي کې ښوونکي وو. مېرمن یې حلیمه نومېده. دوی دوه اولادونه لرل. د لور نوم یې رڼا او د زوی نوم یې پوپل و. رڼا د دوهم او پوپل د پنځم ټولګي زده کوونکي وو.* مېرمن حلیمې به له خپلو بچو سره په سبقونو کې **مرسته** کوله. کلیوالو معلم عبدالرحیم د ښې پوهې له برکته خپل مشر ټاکلی و. د دوی ولسوالي د ښکلې ولسوالۍ په نوم **مشهوره** وه. یوه ورځ عبدالرحیم تر لمانځه وروسته خلکو ته وویل:** که د الله جَلّ جَلَالُهُ رضا وه. سبا به یوه مهمه **مشوره** کوو.

**دوهمه برخه**

بل سهار د کلي د جومات ترخنګ ډېر خلک را ټول شوي وو. معلم عبدالرحیم ورته وویل: عزیزانو، مشرانو، کشرانو، تاسو مې ځکه را بللي یئ چې زموږ **ولسوالي** د ښکلې ولسوالۍ نوم تر پایه وساتي. سبا به که خیر و، یو ځل بیا په ټوله ولسوالۍ کې د لارو، کوڅو د **صفایۍ** اشر کېږي. *

ټولو خلکو ورسره ژمنه وکړه. په کور کې حلیمې خپلو بچیانو رڼا او پوپل ته وویل:** تاسو به هم په اشر کې برخه اخلئ. په سبا یې د ښکلې ولسوالۍ د لارو کوڅو د صفایۍ **اشر** وشو. په ټوله ولسوالۍ کې مشرانو او کشرانو په اخلاص کار وکړ. ښځو او نجونو د کورونو له مخې خځلې پاکې کړې. ښکلې ولسوالۍ یو ځل بیا د ښکلا نوم وساته.

**موضوع:** د وخت ارزښت **توری:** ر

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل کې د /ر/ غږ پېژندل.
۲. د ( ر ) توري لوستل او ليکل.
۳. له توري سره د ۴ کلمو ترکيبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ يې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځينې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پيل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۴. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوود کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)**

۱. د ترکيب د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ارزښت** (قدر، بيه)، **لوبي** (ساتېري)، **سهار** (ګهيځ).
۲. بيا زده کوونکو ته و وايئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه شي په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره


۷ اونۍ
۱ لوست

| را | را |
| --- | --- |
| سـ هار | سهار |
| ر وان | روان |
| خو ري | خوري |

د وخت ارزښت

بریالي ډېر وخت په لوبو تېراوه.
رڼا ورته وویل: وروره! له سهاره تر ماښامه لوبې کوې، درسونه به دې کله لولې؟ بریالي وویل: بیا به یې ولولم. وخت ژر تېرېده.
امتحانونه راورسېدل
رڼا اول نومره شوه. د بریالي نومرې کمې وې.
بریالي له ځان سره وویل: خور مې رښتيا ویل اوس د وخت په ارزښت پوه شوم

۳۷

دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه يي او يوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: چا به ډېر وخت په لوبو تېراوه؟
ځواب: بريالي.
۳. پوښتنه: وخت څنګه تېرېده؟
ځواب: وخت ژر ژر تېرېده.
۴. ذهني پوښتنه: مور څنګه کولی شو له وخت څخه ښه ګټه واخلو؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقيقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکيب کلمې ۳ ځلې په کور کې ولولئ. ورځني تمرينونه د تمرين په کتاب کې ترسره کړئ.

**موضوع:** د وخت ارزښت او ښکلي ولسوالي **توری: ر**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ر/ غږ پېژندل.
۲. د ( ر ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ر/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **رمه، بیرغ، بزگر**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب(۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو د متن لومړۍ برخه(۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ **مرسته**(کومک، لاسنیوی)، **مشهور**(نامتو، نامي) ، **مشوره** (سلا).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله لاندینۍ پوښتنې وکړئ.
* عبدالرحیم به څه ووایي؟




** خلکو به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: عبدالرحیم چېرې اوسېده؟
ځواب: په ښکلې ولسوالۍ کې.
۳. پوښتنه: کلیوالو ولې عبدالرحیم مشر ټاکلی و؟
ځواب: د ښې پوهې له برکته.
٤. ذهني پوښتنه: اشر او ګډه کار کول څه ارزښت لري؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه کلمې وروښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** آزادي **توري:** پ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / پ/ غږ پېژندل.
۲. د ( پ ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ او بدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **آزار**(ښېرا)، **آزاد**(خلاص)، **پنجره**(قفس).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره




دا متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: پرویز مرغان چېرته ساتلي وو؟
ځواب: په پنجره کې.
۳. پوښتنه: پرویز اخر کې څه وکړل؟
ځواب: مرغان یې آزاد کړل؟
۴. ذهني پوښتنه: ستاسو په نظر، پرویز ولې مرغان خوشي کړل؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع :** آزادي، ښکلې ولسوالي **توري: پ**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ پ/ غږ پېژندل.
۲. د ( پ) توري لوستل او لیکل.
۳. له توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د/ پ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نمونه: ( **پُل، لپه، کپ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي بیا په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

### ٤. د اورېدلو فعالیت (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **اشر**(ګډکار)، **صفايي** (پاکي) ، **ولسوالي**( د ولایت یوه سیمه چې ځان ته چارواکي لري)
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.



* خلکو به څه ویلي وي؟
** اوس به ولسوالي څنګه شوې وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: خلکو څه وکړل؟
ځواب: اشر یې وکړ.
۳. پوښتنه: اشر څه ته وایي؟
ځواب: ګډ کار ته وایي.
٤. ذهني پوښتنه: ستاسو په سیمه کې خلک کوم کارونه په ګډه ترسره کوي؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته ونښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي د دې توري او جملې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري: ر، پ**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ر/ او /پ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ر/ پ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړۍ جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا یې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. لوبې، ۲. وخت، ۳. وکړي، ٤. آزاد.**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یې ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یې ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته ووایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په دوو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او دوې جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **د ټولنې د ارزښت** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له څینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونيو تکراراو متداومه ارزونه **توري: آ،س، ی، ت**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د/آ، س، ی، ت/غږونو پېژندل.
۲. د (آ، س، ی، ت ) تورو لوستل او ليکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معيار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معيار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم ليکل (د سموالي معيار ۹۰٪).

**۱. د غږونو اوريدل، د تورو لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه يې د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې وليکئ ورته اشاره وکړئ او غږونه يې و وايئ.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)**

۱. د هجاوو د تمرين د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دويم متن تکرار (۱۰ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووايا ست چې د تېرې ورځې د کيسې په اړه فکر وکړي چې کيسه د څه په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه يي لولي.
۴. زده کوونکي متن يوازې لولي.

**٤. املا (۱۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووايئ چې نن به ځينې کلمې او جملې وليکي.
۲. زده کوونکو ته ووايئ چې درسي کتاب بند او د تمرين کتاب خلاص کړي.
۳. ورته و وايئ چې د **بزگر** کلمه ولولي او هجاوې يې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **بز گر** دا کلمه ۲



هجاوې لري. زده کوونکو ته و وايئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري يې د تمرين په کتاب کې وليکي.
۴. همدغه کار د لاندې(۷)کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **مور، بريالی، خور، سهار، روان، رڼا، درس**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله يې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **بريالی ډېر وخت په لوبو تېراوه.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.
۷. دا کار د لاندې دريو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **رڼا اول نومره شوه.**
- **پرويز په پنجره کې مرغان ساتلي وو.**
- **بندي مرغان يې آزاد کړل.**

۸. زده کوونکو ته و وايئ چې د تمرين کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نيمګړې جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**اتمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** تولنه **فرعي موضوع:** اوبو وړی پُل **توري:** ن، ج

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ن/ او /ج/ غږونو پېژندل.
۲. د (ن، ج) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **ملګری**، **پوهه**، **شړکنده**، **خوړ**،**خاروي**، **کیسۍ** کلمو په معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې جملې لیکل.
۹. د (ن، ج) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسۍ خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

### ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه

- د نورو خبرو ته ښه غوږنیول.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده‌کوونکو سره د (ن، ج) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له څو زده‌کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده‌کوونکي دې له کړکي یا پنسل قلم سره د (ن، ج) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

### د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه

- له لومړۍ اونۍ څخه تر پنځمې اونۍ پورې لارښوونې او سپارښتنې په نورو اونیو کې هم په پام کې ونیسئ.
- هغه زده‌کوونکي چې په درس کې لایق وي له هغو زده‌کوونکو سره چې په درس کې ستونزې لري، مرسته وکړي.
- زده‌کوونکي دې نوو جملو ته غوږ ونیسي او د لاسونو په حرکتونو سره دې کلمې وشمېري.
- په منظمه توګه په ټولو اونیو کې د هرې ورځې د درس به پای کې زده‌کوونکي وارزوئ او کورنۍ دنده ورته تشریح کړئ.
- د درس موخې او د ټولګي مقررات زده‌کوونکو ته تشریح کړئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

### د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

## اوبو وړی پُل

**لومړۍ برخه**

پسرلی و، هوا خوږه لګېده. بزګرانو په ځمکو کې کارونه کول. ماشومان په مینه او خوشحالۍ ښوونځي ته تلل. شپانه د غره په شنه لمن کې رمه څروله او خوږه شپېلۍ یې غږوله. په آسمان کې وریځې راغلې. **ناڅاپه** ټول آسمان وریځو ونیوه. **شړکنده** باران پیل شو. ساعت په ساعت زیاتېده. په **خوړونو** او لارو کوڅو کې اوبه رواني شوې. *

شپانه د غره له سره ناري کړې: واخلکو! لوی سیلاب را روان دی، بندوبس یې وکړئ. څانونه، ماشومان او خاروي مو خوندي کړئ.* *

**دوهمه برخه**

د سیلاب **څپې** د باغونو او ځمکو په پولو او دېوالونو لګېدې. د کلي پُل یې یووړ. د بازار لاره بنده شوه. ماشومان ښوونځي ته نه شول تلای. د کلي مشر نجیب،کلیوالو ته وویل: بایده دي چې په ګډه لاس په کار شو او اوبو وړی پُل جوړ کړو.* څینو کلیوالو ویل چې کومې مؤسسې ته به ووایو. **

خو نجیب وویل: نه، نه، مؤسسې ته نه وایو؛ په **اتفاق** او ګډ کار سره غرونه له مخې لرې کیدای شي. کلیوال لوی واړه د پله جوړولو ته راووتل. پُل جوړ شو. خلکو د اتفاق او خپل ګډ کار **نتیجه** ډېره ژر ولیده.

**موضوع:** کتاب **توری:** ن


٨ اونۍ ١ لوست

آ سان | آسان
ای حان | ایمان
آس مان | آسمان
کار وان | کاروان

کتاب

مینې او امان الله کتابونه لوستل. مینې امان الله ته وویل: ورور! یو ښه شعر څو راته ووایه. امان الله وویل: سمه ده. د کتاب شعر به درته ووایم

آسمان کې زاڼې دي
کتاب کې پاڼې دي
زاڼې وزرې لري
کتاب خبرې لري
کتاب ملګری زما
کتاب ملګری د تا
کتاب ښه خوند لري
پوهه د ژوند لري

**د زده کړې موخې**

١. د کلمې په پیل کې د /ن/ غږ پېژندل.
٢. د (ن) توري لوستل او لیکل.
٣. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**١. د غږ اوریدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

١. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته ورو پېژنئ.
٢. زده کوونکي دې ځینې کلمې و وایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
٣. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
٤. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**٢. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

١. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**٣. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

١. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **زاڼې** (یو ډول مرغه دی)، **وزر** (بال، د مرغانو د الوتلو غړی)، **پوهه** (علم)
٢. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
٣. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه شي په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
٢. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

١. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که خنګه؟ هو/نه
٢. پوښتنه: امان د څه شي شعر ووایه؟
ځواب: د کتاب شعر
٣. پوښتنه: په کتاب کې څه شی وي؟
ځواب: پاڼې
٤. ذهني پوښتنه: کله چې یو څوک تاسو ته شعر وایي، څنګه د شعر پر معنا ځان پوهولی شئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

١. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې ۳ ځلې په کور کې ولولئ. ورځنۍ تمرینونه د تمرین په کتاب کې ترسره کړئ.

**موضوع:** کتاب، اوبو ورې پُل **توری: ن**



### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ن/ غږ پېژندل.
۲. د (ن) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ن/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور وپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ يې وايي.
د انځورونو نومونه: (**ناک، منګی، چمن**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بیا يې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه يي او یوازې ډول لولي.

### ٤. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ناڅاپه** (وار له واره، نابېره)، **شرکنده** (تېز)، **خوړ** (شېله، مانده، ناوه چې کله کله د باران په وخت کې سېلاب پکې راځي.)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې دغه پوښتنې وکړئ.
* څه پېښه به شوې وي؟
** بیا به څه شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: باران څنګه کېده؟
ځواب: ساعت په ساعت زیاتېده.
۳. پوښتنه: شپانه څه وویل؟
ځواب: وا خلکو! لوی سېلاب را روان دی.
٤. ذهني پوښتنه: که چېرې کلیوالو د شپانه خبرو ته غوږ نه وای نیولای، څه به پېښ شوي وای؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه کلمې وروښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې يې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** کیسې **توري: ج**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ج / غږ پېژندل.
۲. د ( ج ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اوریدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې و وایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **کیسې** (چیستان)، **ستړې** (ستومانه)، **تکه** (یومخ، بیخي)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.



۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: جمیلې او نجیبې چېرته درسونه ویل؟
ځواب: په باغچه کې.
۳. پوښتنه: جمیلې څه وویل؟
ځواب: یوه کیسې به درته و وایم.
٤. ذهني پوښتنه: څنګه کولای شئ د خپلو ټولګیوالو په خبرو ښه پوه شئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع : کیسې او اوبو وړې پُل** **توري: ج**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ج / غږ پېژندل.
۲. د/ ج / توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ج/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور پېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **جوارې، نجلۍ، حج**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي بیا په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په انفرادي او جوړه یي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو فعالیت (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **اتفاق** (یووالی)، **څپه** (موج)، **نتیجه** (څه چې د یوه کار په پای کې پېښېږي).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه لاندینۍ پوښتنې د کیسې په هکله وکړئ.



* کلیوالو به څه ویلي وي؟
** نجیب به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: څه شي پُل یوور؟
ځواب: سېلاب.
۳. پوښتنه: نجیب کلیوالو ته څه وویل؟
ځواب: راځئ چې په ګډه پُل جوړ کړو.
٤. ذهني پوښتنه: کله چې په ګډه کار کوو، د یو او بل خبرو ته ولې باید غوږ ونیسو؟

**۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه جملې وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي د دې توري او جملې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع: د اونۍ تکرار** **توري: ن،ج**

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ن/ او /ج/ غږونو پېژندل.
۲. د (ن،ج) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. خبرې، ۲. وزرې، ۳. لرګیو، ٤. سپین.**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

#### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.




### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته ووایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په دوو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او دوې جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **د نورو خبرو ته د غوږ نیولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري: ی،ت، ر، پ**

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د(ی،ت،ر،پ) غږونو پېژندل.
٢. د (ی،ت، ر، پ) تورو لوستل او لیکل
٣. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ٩٥٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ٩٠٪).
٥. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ٩٠٪).

### ١. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (٥ دقیقې)

١. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
٢. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي ورته اشاره کوي او غږونه یې وایي.

### ٢. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (٥ دقیقې)

١. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ٣. د لوستلو دویم متن تکرار (١٠ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
٢. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
٣. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
٤. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ٤. املا (١٥ دقیقې)

١. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
٢. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
٣. ورته ووایئ چې د **زانې** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **زا نې** دا کلمه ٢



هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
٤. همدغه کار د لاندې (٧) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **امان، کاروان، ځواب، خوند، ژوند، کتاب، آسمان.**
٥. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **آسمان کې زانې دي.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
٧. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **کتاب کې پاڼې دي.**
- **جامه یې تکه توره.**
- **پخپله سپین وي، ګوره!**

٨. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
٩. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (٥ دقیقې)

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ٣ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (٤٠) دقیقې

**نهمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** ترافیکي لارښوونې **توري:** ک، ټ

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د /ک/ او / ټ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ک،ټ ) تورو سم لوستل او لیکل. (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د **ترافیک، ترافیکي څراغونه، ټالۍ، ترانه، وسیله، پلی،** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ک،ټ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرښې خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- د خطر پر مهال خپل ځانونه کنټرول کړي.

## د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ک،ټ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

## ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې له کړکې یا پنسل قلم سره د (ک، ټ) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

## د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه

- له لومړۍ اونۍ څخه تر پنځمې اونۍ پورې لارښوونې او سپارښتنې په نورو اونیو کې هم په پام کې ونیسئ.
- هغه زده کوونکي دې چې په درس کې لایق وي له هغو زده کوونکو سره چې په درس کې ستونزې لري، مرسته وکړي.
- زده کوونکي دې نوو جملو ته غوږ ونیسي او د لاسونو په حرکتونو سره دې کلمې وشمېري.
- په منظمه توګه په ټولو اونیو کې د هرې ورځې د درس په پای کې زده کوونکي وارزوئ او کورنۍ دنده ورته روښانه کړئ.
- د درس موخې او د ټولګي مقررات زده کوونکو ته بیان کړئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### له سړک تېرېدل

**لومړۍ برخه**

ذاکر استاد له شاګردانو څخه پوښتنه وکړه: تاسې له سړک څنګه تېرېږئ؟

کریم وویل: مور یا پلار مو لاس نیسي، هغوی مو د سړک له یوې غاړې بلې غاړې ته اړوي. ښوونکي وویل: آفرین! دا **سم** کار دی؛ خو که مور او پلار درسره نه وي، نو بیا؟ حکیمې ځواب ورکړ: * **ترافیک** پولیس ته وایو چې له سړکه مو واړوي. ښوونکي وویل: **شاباس!**

تا هم ښه خبره وکړه. خو که مور او پلار هم درسره نه وي او ترافیک پولیس هم نه وي، بیا به څه کوئ؟ دا به زه درته وایم. **

**دوهمه برخه**

ذاکر استاد وویل: چې له سړکه تېرېږئ، اول به کیڼ لوري ته او بیا به ښي لوري ته وګورئ. که موټر، موټرسایکل، بایسکل، یا بله **وسیله** نه وه، بیا به په کراره تېرېږئ. که د سړک پرغاړه ترافیکي څراغونه وي، ورته وګورئ.* هغه شین څراغ چې د انسان ښه وربانديې شته، د **پلیو** خلکو لپاره دی. دغه څراغ چې بل شو، تاسې له سړکه تېرېدای شئ. په ځینو ځایونو کې د سړک له یوې غاړې تر بلې غاړې پورې سپینې **کرښې** ایستل شوې وي. ** دا د پلیو دهلېزونه بلل کېږي او تاسې باید له همدې ځایه د سړک بلې غاړې ته واوړئ.

**موضوع:** ترافیک **توری:** ک

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ک/ غږ پېژندل.
۲. د ( ک) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

**۲. په هجاوود کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ترافیک** ( هغه پولیس چې پر سړکونو د موټرو او خلکو تګ راتګ تنظیموي) **ترافیکي څراغونه**، (په واټونو کې لګبدلي څراغونه چې سور، شین، او زېر رنګونه لري) **ټکر** (یو له بل سره لګېدل)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.



۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: سور څراغ څه وايي؟
ځواب: وايي ودرېږه.
۳. پوښتنه: ژېړ څراغ څه وايي؟
ځواب: وايي تیار شه.
٤. ذهني پوښتنه: له سړک څخه د تېرېدو پرمهال کوم ټکي باید په پام کې ونیسو؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** ترافیک او له سړکه تېرېدل **توری:** ک

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ک/ غږ پېژندل.
۲. د (ک) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ک/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **کمپیوټر، عینکې، ترافیک**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه‌یي او بیا په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **سم**(صحیح)، **ترافیک**(پولیس)، **شاباس**(آفرین)
۲. بیا زده‌کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده‌کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه



پوښتنې وکړئ.
* حکیمې به څه ځواب ورکړی وي؟
** ښوونکي به نوري کومې خبرې وکړي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: کریم څه وویل چې له سړکه به څنګه تېرېږي؟
ځواب: مور یا پلار مو لاس نیسي. هغوی مو د سړک له یوې غاړې بلې غاړې ته اړوي.
۳. پوښتنه: د حکیمې ځواب څه و؟
ځواب: ترافیک پولیس ته وایم چې له سړکه مې واړوي.
٤. ذهني پوښتنه: کله چې له سړک خڅه تېرېږئ، څه به کوئ؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### بیاکتنه او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده‌کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده‌کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** ټال **توري:** ټ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ټ/ غږ پېژندل.
۲. د (ټ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اوریدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې څینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ټالې**(زنګېدل)، **چیندرۍ**(یوه لوبه ده)، **چوتره**(صوفه، برنډه).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره


ټ
آ لو کاټ | آلوکاټ
ګو ماټ | ګوماټ
پې ملوټ | پېلوټ
واټ | واټ

ټال
څټک او خاتوله سره ورور او خور دي. څټک په ټال کې ټالې وهي. خاتوله چیندرۍ کوي. دواړه کټ کټ خاندي او دا ترانه وایي.

ټال ټال ټالې وهم | توپ توپ چیندرۍ وهم
دا د چوترې غاړه ده | دلته پلټۍ وهم
ټال ټال ټالې وهم | شیبلي وهم شیبلي وهم
وګه د ستو کښو | زه په کې ځمځی وهم

۵۱

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: څا په ټال کې ټالې وهلې؟
ځواب: څټک
۳. پوښتنه: څوک ورور او خور وو؟
ځواب: څټک او خاتوله.
۴. ذهني پوښتنه: کله چې تاسو په ټال کې زانګئ څه کوئ چې و نه

**بیاکتنه او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او نوی غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**—د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

موضوع: ټال او له سړکه تېرېدل **توری: ټ**



**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ټ/ غږپېژندل.
۲. د (ټ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ټ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نمونه: ( **ټال، کټو، کټ**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب(۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **وسیله** (هغه څه چې د کار په ترسره کولو کې مرسته کوي)، **پلی**(پیاده)، **کرښې** ( خطونه،لیکې)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. دلوستلوپه اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.
* بیا به یې څه ویلي وي؟
** څه فکر کوئ دا کرښې به د څه لپاره وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: کله چې له سړکه تېرېږئ، اول کوم لوري ته ګورئ؟
ځواب: کیڼ لوري ته.
۳. پوښتنه: پر سړک سپینې کرښې د څه لپاره ایستل شوې دي؟
ځواب: له سړکه د پلیو خلکو د تېرېدو لپاره.
۴. ذهني پوښتنه: کله چې پر سړک د موټرو تګ راتګ زیات وي او غواړئ چې له سړکه تېر شئ، څه کوئ؟

**۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې توري او جملې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ک،ټ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ک/ او /ټ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ک، ټ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل(۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا یې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: ۱. **تېرېږه**، ۲.**ودرېږه**، ۳.**ټالي**، ٤. **وهم**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار(۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته ووایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په دوو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
۶. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او دوې جملې ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **له سرک څخه د تېرېدو د ستونزې** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

### بیاکتنه او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**— خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونيو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ک، ټ

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د/ک، ټ/غږونو پېژندل.
٢. د ( ک، ټ ) تورو لوستل او ليکل
٣. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معيار ٩٥٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معيار ٩٠٪).
٥. د کلمو او جملو سم ليکل (د سموالي معيار ٩٠٪).

### ١. د غږونو اوربدل، د تورو لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

١. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه يې د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورو پېژنئ.
٢. د توري بڼې پر تختې وليکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه يې ووايئ.

### ٢. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)

١. د هجاوو د تمرين د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

### ٣. د لوستلو دويم متن تکرار (١٠ دقيقې)

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کيسې په اړه فکر وکړي چې کيسه د څه په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي پخپله متن لولي.
٢. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای لولي.
٣. زده کوونکي متن جوړه يي لولي.
۴. زده کوونکي متن يوازې لولي.

### ٤. املا (١۵ دقيقې)

١. زده کوونکو ته ووايئ چې نن به ځينې کلمې او جملې وليکي.
٢. زده کوونکو ته ووايئ چې درسي کتاب بند او د تمرين کتاب خلاص کړي.
٣. ورته ووايئ چې د **ترافيک** کلمه ولولي او هجاوې يې د لاسونو په حرکتونو سره ببلې کړي. **تـ ـرا فيک** دا کلمه



٣ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووايئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري يې د تمرين په کتاب کې وليکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **کابل، سرک، ځيرک، کريم، چوک، مکتب، ټکر.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او ځلور ځله يې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **سور ځراغ وايي: ودرېږه.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.
٧. دا کار د لاندې دريو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **شين ځراغ وايي تېرېږه.**
- **ټال ټال ټالۍ وهم.**
- **ټوپ ټوپ ټيندرۍ وهم.**

٨. زده کوونکو ته ووايئ چې د تمرين کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
٩. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### بياکتنه او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نيمګړې جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴٠) دقيقې

**لسمې اونۍ ته کتنه، موضوع:** دتېرواونيوتکرار **فرعي موضوع:** مېږه او لېوه **توري:** ی،ت،ر،پ،ن،ج،ک،ټ

### د اونۍ د زده کړې موخې

١. د کلمو په پيل، منځ او پای کې د /ی،ت،ر،پ،ن،ج،ک،ټ/ غږونو پېژندل.
٢. د (ی،ت،ر،پ،ن،ج،ک،ټ) تورو سم لوستل او ليکل. (د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
٣. له نوي توري سره د ١٦ کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
٥. د **مړاوي، غوړېدل، د غره لمن، مُلک، ميراث، بې پروايي** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)
٧. د دې اونۍ کلمې به سمې وليکلای شي.
٨. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
٩. د (ی،ت،ر،پ،ن،ج،ک،ټ) توري له نورو تورو سره سم ترکيب کړي او د کرسي خط پرمخ يې په ښايسته ډول مشق کړي.

### ټولنيزې-عاطفي زده کړې موخه

- ستونزې وپېژني او هوارې يې کړي

### د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ی،ت،ر،پ،ن،ج،ک،ټ) تورو ترکيبي او ښايسته ليکل، مشق او تمرين کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقيقې)

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکيبي او ښايسته ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکي يا پنسل قلم سره د(ی،ت،ر،پ،ن،ج،ک،ټ)تورو ليکل په کورونو کې تمرين کړي.

### د دې اونۍ ځانګړې يادداشتونه

- يوه کلمه لومړی هجا او بيا ترکيب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعاليت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو يو لست جوړ کړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرين کړي.
- که ځينو زده کوونکو ته نوښتي ليکل سخت وي، کولای شئ، د ځينو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلا: د دې اونۍ په کيسه کې مو څه خوښ شول؟ آيا تاسو د کيسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شيانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند يو رسم وباسي او په اړه يې دوې جملې وليکي. هغوی وځارئ او که يې اړتيا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

### د دويمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

#### مېږه او لېوه

**لومړۍ برخه**

يوه مېږه د **غره لمن** کې څربده. پام يې نه و چې رمه ترې تللې ده. که ګوري چې لېوه ورنژدې کېږي.*
مېږې وويل: سه سه سلام عليکم.
لېوه وويل: ته دلته څه کوې؟ ته خبره نه يې چې دا **مُلک** ماته له نيکه څخه په **ميراث** پاتې دی. ته څنګه بې اجازې دلته راغلې يې؟ اوس به دې وخورم.**
مېږې وويل: زما خو باور نه کېږي چې دا مُلک دې ستا د نيکه وي. هاغلته يو سپين ږيری دی. هغه ته به معلومه وي. راځه چې ورشو. له هغه څخه به پوښتنه وکړو. که ويې ويل چې دا ځای ستا د نيکه دی، بيا مې وخوره.

**دوهمه برخه**

لېوه په زړه کې وويل: عجبه **ساده** مېږه ده. سپين ږيری چې ما ووينې، پخپله به وتښتي. راځه ورسره ولاړ شه.*
لېوه او مېږه دواړه روان شول. هلته د رمې سپی پروت و. ** دوی يې وليدل. ورمنډه يې کړه. لېوه يې له مرۍ څخه ونيوه. مېږه له مرګه خلاصه شوه. ځان سره يې **ژمنه** وکړه چې بيا به **بې پروايي** نه کوي او له رمې څخه به نه جلا کېږي.

**موضوع:** ترې ګلان **توری:** ی،ت

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ی،ت/ د غږونو پېژندل.
۲. د ( ی، ت) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته ورو پېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **اوړی**(دوبی) **مړاوي** ( کله چې تازه ګې له لاسه ورکړي)، **غوړېدل** (د غوټۍ خلاصېدو ته وایي یا دا چې مړاوی ګل تازه شي)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.




۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: یما او لیلا له کوم ځای څخه کور ته راغلل؟
ځواب: له ښوونځي څخه.
۳. پوښتنه: لیلا څه وویل؟
ځواب: دا ګلان ولې داسې مړاوي دي؟
۴. ذهني پوښتنه: که تاسې ووینئ چې ونې، بوټې یا ګلان ترې دي، نو داستونزه به څنګه هواروئ؟

**بیاکتنه او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** ترې ګلان مېږه او لېوه   **توری:** ر، پ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ر، پ/ د غږونو پېژندل.
۲. د (ر، پ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ر، پ/ غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ يې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **رمه، بیرغ، بزګر، پل، لپه، کپ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي بیا په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه يي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړی برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. دلاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **دغره لمن** (دغره په بېخ کې هواره ځمکه)، **مُلک** (وطن)، **میراث** (هغه مال چې چا ته له پلاره پاتې وي)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.




* مېږې به څه ویلي وي؟
** مېږې به څنګه ځان خلاص کړی وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: مېږه چېرته څرېدله؟
ځواب: د غره په لمن کې.
۳. پوښتنه: لېوه د مېږې خوړلو ته څه پلمه جوړه کړه؟
ځواب: دا زما د نیکه مُلک دی ته بې اجازې ورته راغلې يې.
٤. ذهني پوښتنه: که په یوه لرې ځای کې یوازې پاتې شئ، څنګه ځان له خطره ساتئ؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې يې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي د ې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** په لوبو کې پام کول **توری:** ن،ج

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ن، ج/ غږونو پېژندل.
۲. د (ن ، ج) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **لاس غځول**(لاس اوږدول)، **څنډل**( څنډوهل)، **بې پروايي**( بې فکري ، بې پامي).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.




۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: څوک په ټال کې زنګېدلې؟
ځواب: نجیبه او جمیله
۳. پوښتنه: نجیبه ولې له ټال څخه راولوېده؟
ځواب: څپلکه یې لوېدلې وه، دې را اخیسته.
٤. ذهني پوښتنه: څوک چې په لوبو کې بې احتیاطي کوي، له څه ډول ستونزو سره مخ کېږي؟

**بیاکتنه او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** په لوبو کې پام کول او مېړه او لېوه **توری:** ک، ټ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ک، ټ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ک،ټ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ک، ټ/ غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **کمپیوټر، عینکې، ترافیک، ټال، کټوه، کټ**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ساده**(سپین زړی)، **ژمنه** (وعده)، **بې پروایي** (بې فکري، پام نه کول).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پرمهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.



* هلته به څه شوي وي؟
** سپي به څه کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: لېوه په زړه کې څه وویل؟
ځواب: عجبه ساده مېړه ده. سپین ږیری چې ماووینئ پخپله به وتښتي.
۳. پوښتنه: د رمې سپي څه وکړل؟
ځواب: لېوه یې له مرۍ نه ونیوه.
٤. ذهني پوښتنه: تاسو تر اوسه کومې ستونزې هوارې کړې دي؟

**۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې توری او جملې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ی، ت،ر، پ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ی، ت،ر، پ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ی، ت،ر، پ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل(د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل(۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا یې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: ۱. **ورځ**، ۲. **اوبه**، ۳. **ولوېده**، ٤ . **بې پروایي**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار(۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې وایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته وايي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په دوو جملو کې نورو ته وایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او دوې جملې ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **د ستونزو د هوارولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له څینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته وایي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ن،ج، ک، ټ

## د زده کړې موخې

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ن،ج، ک، ټ/ غږونو پېژندل.
٢. د (ن،ج، ک، ټ) تورو لوستل او لیکل
٣. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
٥. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. دغږونو پېژندل، دغږونو او تورو ترمنځ اړیکې (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس به دغږونو او تورو د پېژندلو تمرین ترسره کړو.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې مو د تورو چوکاټ ته وګورئ. په چوکات کې هره کرښه یوه شمېره لري. زه به لومړی د کرښې شمېره وایم، بیا به د هماغه کرښې د یوه توري غږ وایم. تاسو له هماغه توري حلقه تاو کړئ. ښووکی له زده کوونکو سره یو مثال تر سره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونه مو را واخلئ. ښوونکی په لومړۍ کرښه کې د /پ/ غږ وایي او زده کوونکي د (پ) له توري څخه حلقه تاووي. ښوونکی او زده کوونکي دې همدا کار په نورو کرښو کې د لاندې غږونو لپاره ترسره کړي.
**غږونه:** ۲. /ج/ ۳. /ک/ ۴. /ی/ ۵. /ر/ ٦. /ټ/ ۷. /ت/ ۸. /ن/
۴. په پای کې ښوونکی د زده کوونکو د تمرین کتابونه ګوري او نومرې یې د دوامداري ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### ۲. دآشنا کلمو پیدا کول (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس به د آشنا کلمو د پیدا کولو تمرین ترسره کړو.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې مو ځینې انځورونه وینئ. د هر انځور لاندې څلور کلمې لیکل شوې دي. تاسو به د هر انځور لاندې له هغې کلمې څخه حلقه تاووئ چې د هماغه انځور نوم دی . ښوونکی له زده کوونکو سره یو مثال ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونه مو راواخلئ او د هر انځور لاندې اړونده کلمه په نښه کړئ.
**سمې کلمې:** ۱. ناک ۲. یوم ۳. جوار ۴. تله ۵. ټال ٦. بیرغ
۴. ښوونکی په ټولګی کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره چې ستونزې لری، مرسته کوي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ٤. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.



۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **نیالګي** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره ښېلې کړي. **نیال ـ ګي** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ:
**کتاب، توده، مازدیګر، ګلان، لوبې، ناڅاپه، هوا.**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **هوا توده وه.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **دواړو ګلان اوبه کړل.**
- **نجیبه او جمیله په ټال کې زنګېدلې.**
- **نجیبې جامې وځنډلې.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. دزده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** دهجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**یوولسمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** موږک او زمری **توري:** ږ، خ

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د / ږ، خ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ږ،خ) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **مرسته، مشوره، لارښوونه، عجیبه، پخلا، خطا** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې به سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ږ،خ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

### ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه

- له نورو سره یو ځای کار وکړي

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ږ، خ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کړکي یا پنسل قلم سره د (ږ،خ) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

## د دې اونۍ ځانګړي یادداشتونه

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او په اړه یې درې جملې ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې **په** ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### موږک او زمری

**لومړۍ برخه**

زمری په ځنګله کې اوسېده. ښه ساعت یې تېر و. یو نه یو څه خو به یې خامخا **ښکار** کول. یوه ورځ سخت باران اورېده. هوا سړه وه. زمری ډېر وږی و. اخوا دې خوا وګرځېده. ښکار یې پیدا نه کړ. موږک په مخه ورغی.* زمري د موږک پر لکۍ پښه کېښوده. موږک خوارکي وژړل. په زاریو سر شو. ویې ویل: مه کوه زمری خانه. زما په خوړلو کله مړېږې. پرېږده چې لاړ شم. یوه نه یوه ورځ به دې **په کار** شم.**
زمري په کړس کړس وخندل. خندا یې په ځنګل کې خوره شوه. مرغان له ونو والوتل. زمري موږک ته وویل: **عجیبه** ده. ته به مې په کار شې؟

**دوهمه برخه**

بله ورځ زمری لوږې پسې اخیستی و. لوږې ژوري یې لټولې. د ښکار درک نه و. له لرې یې یوه نازنینه **تنکۍ** هوسۍ ولیده. زړه یې په ټوپونو شو. ورو ورو ور روان شو. * پر هوسۍ یې ورټوپ کړ. خو پخپله د هوسۍ ښکار شو. د داسې هوسۍ چې ښکاري له لرګیو او ټوکر څخه د هوسۍ څېره جوړه کړې وه چې ځینې داړونکي حیوانات پرې **خطا** باسي. د زمري پښې د ښکاري په دام کې بندې شوې. چې هرڅومره زور یې وکړ، خلاص نه شو. لبونۍ چیغې یې په ځنګل کې خورې شوې. ** هماغه موږک راغی. د دام تارونه یې په تېرو غاښونو پرې کړل. زمری یې له دامه خلاص کړ. زمري سخت شرمېدلی و. له موږک یې مننه وکړه. ویې ویل: نور به هېچاته په **کمه سترګه** نه ګورم.

**موضوع:** دوه ملګري **توری:** ړ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ړ/ غږ پېژندل.
۲. د (ړ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ او رېدل، د توري لوستل او ليكل (۵ دقيقې)**

۱. د انځور په هكله بحث وكړئ او لومړى غږ يې زده كوونكو ته ورو پېژنئ.
۲. زده كوونكي دې ځينې كلمې و وايي چې په همدې غږ سره پيل كېږي.
۳. ښوونكى توری پر تختې ليكي، اشاره ورته كوي او غږ يې وايي.
۴. بيا، زده كوونكي دا توری د تمرين په كتاب كې ليكي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقيقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده كوونكي نورې كلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **مشوره** (سلا)، **مرسته** (کومک، لاسنيوی)، **لارښوونه** (رهنمايي، چاته د لارې ښودل)
۲. بيا زده كوونكو ته و وايئ چې دا كلمې معنا او په جملو كې يې استعمال كړي.
۳. له زده كوونكو سره د كيسې د انځور او عنوان په هكله بحث وكړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده كوونكي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونكى دې په مناسب لحن (غږ) او حركتونو سره متن زده كوونكو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.


۱۱ اونۍ — ۱ لوست

| | |
|---|---|
| وړا ندې | وړاندې |
| دوا ړه | دواړه |
| ګو ړه | ګوړه |

دوه ملګري

یو ړوند او یو شَل سره ملګري شول. ړانده لاره نه لیده. شَل پر لاره نه شو تللای. دواړو داسې مشوره وکړه: شَل به ړانده ته ور په شا شي. ړانده ته به لاره ښيي. ړوند به د شَل په لارښوونه وړاندې ځي. په آخر کې دواړه خپل ځای ته ورسېدل. په مشوره او مرسته کارونه آسانيږي.

۴. زده كوونكي متن په جوړه يي او يوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده كوونكو پوښتنه وكړئ چې آيا دوی د كيسې په هكله سمه وړاندوينه كړې ده او كه څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: څوک سره ملګري شول.
ځواب: ړوند او شَل
۳. پوښتنه: چا شَل په شا كړ؟
ځواب: ړانده.
٤. ذهني پوښتنه: كه يو ړوند ووينئ چې غواړي له سړكه تېر شي، تاسو به څه كوئ؟

**تكرار او كورنۍ دنده (۵دقيقې)**

۱. توری او غږ له زده كوونكو سره تكرار كړئ.
۲. **كورنۍ دنده:** د تركيب كلمې دې ۳ ځلې په كور كې ولولي. توری او كلمې دې د تمرين په كتاب كې وليكي.

**موضوع:** دوه ملګري،موږک او زمري **توری:** ړ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ړ / غږ پیژندل.
۲. د (ړ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ړ / غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **ړوند، لړم، ګیدړ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب(۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ښکار**(د خوړلو له پاره د نورو حیواناتو نیول)، **په کار**(په دردخوړل)، **عجیبه** (د حیرانتیا وړ).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه



پوښتنې وکړئ.
* زمري به څه کړي وي؟
** ستاسو په فکر زمري به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: زمری چېرته اوسېده؟
ځواب: په ځنګل کې.
۳. پوښتنه: زمري موږک ته څه وویل؟
ځواب: عجیبه ده، ته به مې په کار شې؟
٤. ذهني پوښتنه: ستاسو په فکر، کوچنیان له لویانو سره کومې مرستې کولی شئ؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** خاتوله  **توری:** خ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د /خ/ غږ پېژندل.
۲. د (خ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې و وایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ **مروره**(خپه)، **پخلا** (له مرورتوب څخه راوتل)، **ګډې**( یوځای، په شریکه)
۲. بیا زده‌کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.



۱۱ اونۍ ۳ لوست

خ

شاهرخ

خاتوله

شاهرخ کورته راغی. خاتوله خور یې خپه وه. دا شعر یې ورته ووایه

وایه څه خبره ده؟ | خور مې څه مروره ده
[illegible] | پښه یې ترینه ورکه ده
پښه به یې پیدا کړم | جوړه به یې بیا کړم
خور به مې پخلا کړم | دا به دلاسا کړم
ګډې لوبې تل کوو | مینه یو پر بل کوو

خاتوله خوشحاله او په خندا شوه

۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: څوک خپه ده؟
ځواب: خاتوله.
۳. پوښتنه: چا ورته شعر ووایه؟
ځواب: شاهرخ.
٤. ذهني پوښتنه: که ستاسو خور یا ورور خپه یا مرور وي، څنګه یې خوشحالولی شئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** خاتوله، موږک او زمري **توری:** خ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /خ/ غږ پېژندل.
۲. د (خ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکې د انځورونو په هکله بحث کوي او د /خ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **خولې، تخته، مخ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیایې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. دلاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **تنکی**(نازکه)، **کمه سترګه**(په کم نظر کتل، وروکی ګڼل)، **خطا**(تېر ایستل)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو نه دغه پوښتنې وکړئ.




* زمري به څه کړي وي؟
** بیا به څه پېښه شوې وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: زمري له لرې څه ولیدل؟
ځواب: هوسۍ یې ولیده.
۳. پوښتنه: هغه په رښتیا هوسۍ وه؟
ځواب: نه، ښکاري له لرګیو او تیوکر څخه د هوسۍ څېره جوړه کړې وه.
۴. ذهني پوښتنه: کوچنیان کوم کارونه کولی شي چې لویان یې نه شي کولی؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې توری او جملې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ړ، خ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ړ، خ/غږونو پېژندل.
۲. د ( ړ، خ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور وپېژني.
۲. ښوونکی د تورو بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل(۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړۍ جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا یې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: ۱. **نه لیده**، ۲. **پر لاره**، ۳. **پُخلا**، ٤ . **کرم**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار(۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته ووایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په دریو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او درې جملې ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **یو له بل سره د مرستې کولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداوم ارزونه **توري:** ن، ج، ک، ټ



### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ن، ج، ک، ټ/غږونو پېژندل.
۲. د (ن، ج، ک، ټ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
٥. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ٤. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **وګړي** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **و ګـ ړي** دا کلمه

۳ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **دواړه، شَل، ملګري، ړوند، وړاندې، موړ، غواړي.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **رانده لاره نه لیده.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **شَل پر لاره نه شو تللای.**
- **خور به مې پخلا کړم.**
- **دا به دلاسا کړم.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**دولسمې اونۍ ته کتنه، موضوع:** ښوونځی **فرعي موضوع:** د ښوونکو حقونه **توري:** ش،غ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

١. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د/ش/ او /غ/ غږونو پېژندل.
٢. د (ش،غ) تورو سم لوستل او لیکل(د سموالي معیار ٩٥٪ دی)
٣. له نوو تورو سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ٨٠٪ دی)
٥. د **ښاروالي**، **جریمه**، **مشتریان**، **پوهه**، **حاصل**، **ادب** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ٨٠٪)
٧. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
٨. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
٩. د (ش، غ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- نورو ته درناوی وکړي او په معنا یې پوه شي

**د حسن خط فعالیت (٣٥ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ک،ټ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (٥ دقیقې)**

- له خو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې له کړکې یا پنسل قلم سره د (ک، ټ) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

**د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه**

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او درې جملې ورته ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (٥ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**د ښوونکي حقونه**

**لومړۍ برخه**

د شریفې او شمشاد مور او پلار د غازي ادې په ښوونځي کې ښوونکي دي. شمشاد په دوهم او شریفه په لومړي ټولګي کې ده. یو ماښام شریفې له پلار څخه پوښتنه وکړه:*

پلار جانه! د ښوونکي **حقونه** کوم دي؟

پلاریې پرتندي ښکل کړه. ویې ویل:** آفرین لورې! ښه پوښتنه دې وکړه. ګوره! ښوونکي شاګردانو ته **پوهه** او علم ور زده کوي. په ښو او بدو یې پوهوي. که شاګردان له ښوونکو څخه علم او پوهه **حاصله** کړي، نو ته پوهېږې چې څه به وشي.

**دوهمه برخه**

شریفه په دې نه پوهېده چې څه به وشي.* پلار یې ورته وویل: شاګردان چې **علم** یې حاصل کړی وي، خپل ځان، کورنۍ او وطن ته به یې خیر ورسېږي. ښوونکي لکه مور او پلار دربانديې حق لري چې احترام او درناوی یې وکړئ. تاسې باید له ښوونکو سره په **ادب** خبرې وکړئ. سلام ورته وکړئ. خبرو ته یې غوږ ونیسئ. زموږ د وطن لوی شاعر، خوشحال بابا د ښوونکو په باره کې ویلي دي:

په سپینه ږیره به یې **منت** ومنم
که ووړکی راشي راته څه ونښيي

معنا یې دا ده** چې که یو ووړکی ماشوم هم یو څه در زده کړي، باید چې درناوی یې وشي.

**موضوع:** د شاتو دوکان **توری:** ش

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ش/ غږ پېژندل.
۲. د (ش) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **دنده** ( وظیفه) **ناروغه** ( مریض) **ښاروالي** (هغه اداره چې د ښار د صفا کولو او تنظیم وظیفه لري)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.


د شاتو دوکان
شمس د ښکتاش پلار دی. هغه د شاتو دوکان لري. ښکتاش به کورنۍ دنده لیکله، وروسته به دوکان ته ورتلو. ښکتاش به د دوکان مخه جارو کوله. یوه ورځ ښکتاش ناروغه شو. دوکان ته ولاړ نه شو. د شمس هېر شول چې د دوکان مخه صفا کړي. ښاروالۍ جریمه کړ. اوس شمس هر وخت د دوکان مخه صفا کوي. مشتریان یې هم ډېر شوي دي.

۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: شمس د څه شي دوکان لري؟
ځواب: د شاتو دوکان.
۳. پوښتنه: ښاروالۍ ولې جریمه کړ؟
ځواب: ځکه چې د دوکان مخه یې صفا نه وه.
٤. ذهني پوښتنه: که موږ د ښاروالۍ قانون ته پام و نه کړو، څه به پېښ شي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** د ښوونکي حقونه **توری:** ش

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ش / غږ پېژندل.
۲. د (ش) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ش / غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه‌یي بیا په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: ( **شمع، پیشو، خط کش** )

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي دې دا متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو متن لومړی برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **حقونه**(دحق جمع)، **پوهه** (معلومات)، **حاصله** (ترلاسه کول)
۲. بیا زده‌کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده‌کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده‌کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.




* څه پوښتنه به یې کړې وي؟
** پلار به یې څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: شریفه په څووم ټولګي کې وه؟
ځواب: په لومړي ټولګي کې.
۳. پوښتنه: شریفې له پلار څخه څه وپوښتل؟
ځواب: د ښوونکي حقونه کوم دي؟
۴. ذهني پوښتنه: څنګه کولای شو خپلو مشرانو ته درناوی وکړو؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده‌کوونکي د ې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** بیرغ  **توری:** غ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /غ/ غږ پېژندل.
۲. د (غ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځیني کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د ویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ **طاق ظفر** (په پغمان کې یوه تاریخي دروازه ده) ، **خپلواکي** (آزادي)، **درناوی** (احترام)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.




٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: غفار چېرته تللی و؟
ځواب: پغمان ته.
۳. پوښتنه: پر طاق ظفر څه شی رپېده؟
ځواب: د افغانستان بیرغ
٤. ذهني پوښتنه: موږ ولې د خپل بیرغ درناوی کوو؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**ــ د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** بیرغ او د ښوونکي حقونه **توری:** غ



## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د اغ/ غږ پېژندل.
۲. د (غ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د اغ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **غر، ټغر، جغ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیایې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **علم**(پوهه)، **ادب** (د چا احترام)، **منت** (احسان کول)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.
* پلار به یې څه ویلي وي؟
** څه فکر کوئ چې د شعر معنا به څه وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: ځوک چې علم حاصل کړي، څه به وشي؟
ځواب: ځان، کورنۍ او وطن ته به یې خیر ورسېږي.
۳. پوښتنه: له ښوونکي سره باید څه ډول خبرې وکړو؟
ځواب: په ادب
٤. ذهني پوښتنه: مور ښوونکو ته څه ډول درناوی کوو؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ش،غ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ش/ او /غ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ش،غ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل(د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور وپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل(۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا یې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه:۱.**جارو** ۲. **پلار** ۳. **خپلواکي** ٤ . **پغمان.**

**۳. د لوستلو لومړي متن تکرار(۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.


د لوست
۱۲ اونۍ
۱- بکتاش په د دوکان مخه ___ کوله (جارو، خځلي)
۲- شمس د بکتاش ___ دی (کتاب، پلار)
۳- بیرغ زموږ د ___ نښه ده (غښتلي، خپلواکي)
۴- غفار ___ ته ولاړ (کتاب، پغمان)
د شاتو دوکان
۷۱

۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په دریو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او درې جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **نورو ته د درناوی** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداوم ارزونه **توري:** ک، ټ، ړ، خ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ک، ټ، ړ، خ/غږونو پېژندل.
۲. د (ک، ټ، ړ، خ ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله دا متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ٤. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **پغمان** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **پغ ـمان** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.



۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **شپېه، جریمه، بکتاش، مُشتریان، خوشحال، ښاروالی، شمس.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **شمس د بکتاش پلار دی.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړې.

- **بکتاش به د دوکان مخه جاور کوله.**
- **غفار پغمان ته ولاړ.**
- **بیرغ زموږ د خپلواکۍ نښه ده.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**دیارلسمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** تولنه **فرعي موضوع:** د مرغانو سیمه **توري:** ز،چ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د / ز، چ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ز، چ) تورو سم لوستل او لیکل(د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **کرونده، غوټه، ډېران، خځلي، ترکاري، کونګ** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ز،چ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسۍ خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- ستونزې هوارې کړي

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ز،چ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کړکي یا پنسل قلم سره د(ز،چ)تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

**د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه**

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او درې جملې ورته ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**د مرغانو سیمه**

**لومړی برخه**

د شنه ځنګله په لمن کې د مرغانو سیمه وه. کونګ، کوتره، کارغه توتکۍ، چتکۍ او چونچڼه د یو بل ګاونډیان وو. دوی په ګډه یو ځای جوړ کړی و. ځوکۍ او مېزونه یې هم په کې ایښي وو. کارغه له **ډېران** څخه والوت. مخ لاس یې ونه مینځل همداسې په **ککړ**مخ د مرغانو ګډ ځای ته راغی. په منګولو کې یې **خځلې** نښتي وې.* دا چې پر چوکۍ کېناست، چوکۍ ککړه شوه. کوترې ورته وویل: وه کارغه! دا منبوکه دې څومره چټله ده. د چا خوا ګرځوي. کارغه منبوکه پر مېز وموښله مېز هم ککړشو. کارغه وزرونه وغوړل.** یو ځوښکې یې چېکۍ لاندې وغورځېدې. بیا یې د رنګ بوتل له بکسه را وایست.

**دوهمه برخه**

منبوکه یې د رنګ په بوتل کې ننه ایسته چې پر کتابچې خپل نوم ولیکي. دې وخت کې کونګ راورسید چتکۍ وویل: ولاړېسئ. کارغه وارخطا شو.* د رنګ بوتل ورنه **واوښت**. د مېز سر په رنګ ککړ شو. کونګ وویل: اووف! دا څه بد بوی دی؟ هلئ! راځئ چې دا ځای صفا کړو.کارغه، کوتره، چتکۍ، توتکۍ او چونچڼه **لګیا** شول. خځلي او د کاغذ ټوټې یې په منبوکو کې واخیستې. د ځنګله په کونج کې یې د خځلو په ټوکرۍ کې واچولې. کارغه ټوکر راواخیست.** د مېز له سره یې رنګ پاک کړ.**کونګ** وویل: آفرین دوستانو! دا ځای به د خپل کور غوندې صفا ساتو.

**موضوع:** زیارکښ بزګر **توری:** ز




**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ز/ غږ پېژندل.
۲. د (ز) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **کروند**ه (د کښت ځمکه)، **غَټېږي** (لویږي)، **ګټه** (فایده)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: د زلمي پلار څه کرلي وو؟
ځواب: پیاز
۳. پوښتنه: چا پیاز اوبه کول؟
ځواب: د زلمي پلار
۴. ذهني پوښتنه: که ستاسو د باغچې بوټي سمه وده نه کوي او مړاوي وي، نو دا ستونزه به څنګه هواروئ؟

### تکرار او کورنی دنده (۵دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنی دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** زیارکښ بزگر د مرغانو سیمه **توری:** ز

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ز/ غږ پېژندل.
۲. د (ز) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکې د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ز/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**زمری، بزگر، مېز**)

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. دلاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ډېران** (هغه ځای چې کثافات په کې اچول کېږي)، **خځلې** (کثافات)، **ککړ** (ناولی).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
* بیا به څه شوي وي؟



** تاسو څه فکر کوئ! څه پېښه به شوې وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: کارغه له کوم ځای څخه والوته؟
ځواب: له ډېران څخه.
۳. پوښتنه: د کارغه په منګولو کې څه نښتي وو؟
ځواب: خځلې.
٤. ذهني پوښتنه: د کارغه کوم کارونه ستاسو خوښ نه شول؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** چاغې چرګې  **توری:** چ



چاغې چرګې

کوچۍ د ترکاریو دوکان لري. کوچۍ مرچ، کچالو، پالک او نور سابه خرڅوي. میرمنې به یې په کور کې ترکاري صفا کولې. پاتې شونې به یې پر دېران غورځولې. ګاونډۍ میرمنې کوچۍ ورته وویل: د ترکارۍ پاتې شونې ولې ایسته اچوې؟ چرګې وساته. د ترکارۍ پاتې شونې چرګو ته اچوه. د کوچۍ میرمنې همداسې وکړل. چرګې یې واخیستې. د دوی چرګې چاغې شوې. اوس هره ورځ هګۍ اچوي.

۷۵

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /چ/ غږ پېژندل.
۲. د (چ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د وړتیا متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ترکاري**(پالک، کرم، ګندنه او داسې نور) **ایسته اچوي** (لرې اچوي)، **پاتې شونې**(د ترکاریو برخ او هغه ځایونه چې نه خوړل کېږي)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: کوچۍ د څه شي دوکان لري؟
ځواب: د ترکاریو.
۳. پوښتنه: کوچۍ په دوکان کې څه شی خرڅوي؟
ځواب: مرچ، کچالو، پالک، او نور سابه.
۴. ذهني پوښتنه: که تولګیوال مو له کومې ستونزې سره مخامخ وي هغه به څنګه هوارېږي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** چاغي او د مرغانو سیمه **توري:** چ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /چ/ غږ پېژندل.
۲. د (چ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د /چ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نمونه: ( **چاینکه، مچی، مچ**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب(۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې بیا په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو متن دوهمه برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **واوښت**(چپه شو)، **لګیا** ( بوخت، اخته)، **کونګ** (یو مرغه دی).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.



* کارغه به څه کړي وي؟
** په ټوکر به یې څه کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: کونګ څه وویل؟
ځواب: اووف! دا څه بد بوی دی.
۳. پوښتنه: مرغانو خپله سیمه څنګه صفا کړه؟
ځواب: په ګډ کار سره.
٤. ذهني پوښتنه: مرغانو خپله ستونزه څنګه هواره کړه؟

**۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توري او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ز، چ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ز، چ/ غږ ونو پېژندل.
۲. د ( ز، چ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اوریدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: ۱. **بزګر**، ۲. **پیاز**، ۳. **ترکاریو**، ٤ . **چاغې**.

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په دربو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او درې جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **په نوښتي ډول د ستونزو د هوارولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له څینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ړ، خ، ش، غ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ړ، خ، ش، غ /غږونو پېژندل.
۲. د (ړ، خ، ش، غ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
۴. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ۴. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **بزگر** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره ښیلې کړي. **بز گر** دا کلمه ۲



هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې(۷)کلمو لپاره هم ترسره کړئ:
**زیارکښ، زلمی، زویه، کرونده، پیاز، پاڼې، تړې.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **د زلمي پلار بزگر دی.**
۶. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې درېو جملو لپاره هم ترسره کړئ.

- **پلار یې په کرونده کې پیاز اوبه کول.**
- **کوچې د ترکاریو دوکان لري.**
- **د دوی چرګې چاغې شوې.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**خوارلسمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** کورنۍ **فرعي موضوع:** کوکوښ، له ماشومانو سره مینه **توري:** ښ، گ

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د/ ښ، گ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ښ، گ) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوي توري سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **کوکوښ، جڅوغه، مینه، نانځکه، مساوات، سجده** کلموپر معناگانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ښ، گ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزي- عاطفي زده کړې موخه**

- له هر چا سره یو ډول چلند او درناوی یې وکړي.

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ښ، گ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له خو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکې یا پنسل قلم سره د(ښ، گ) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

## د دې اونۍ ځانگړې یادداشتونه

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او دري جملې ورته ولیکي. هغوی وځارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولگي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انگېزې رامنځته کول.

## د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### له ماشومانو سره مینه

**لومړی برخه**

د ښاپېرۍ بابا له ماشومانو سره **مینه** کوله. هغه به خپلو لمسانیوته کیسې ویلې. د هغوی پوښتنو ته به یې ځوابونه ویل. ښاپېرۍ ته یې **نانځکه** اخیستې وه او اجمل ته یې* توپ اخیستی و.

یوه ورځ د دوی گاونډې ورته وویل: ته څومره **حوصله** لرې چې هر وخت له ماشومانو سره اخته یې؟

د ښاپېرۍ بابا وویل:** ته پوهېږې چې زموږ پیغمبر ﷺ له ماشومانو سره څومره مینه کوله؟

هغه وویل: نه. بابا وویل: نو غوږ شه چې زه یې یوه کیسه درته وکړم.

حضرت محمد ﷺ به هر وخت ویل:

**دوهمه برخه**

له لور او زوی سره باید یو ډول **چلند** وکړئ. یو سړی له حضرت محمد ﷺ سره ناست و. د دغه سړي کوچنی زوی راغی. ده پر زنگانه کېناوه. وروسته یې وړکۍ لور راغله هغه یې پر ځمکه کېښینوله پیغمبر ﷺ ورته وویل:* تا ولې د دوی تر منځ **مساوات** ونه کړ؟

بله ورځ حضرت محمد ﷺ له نورو سره یو ځای لمونځ کاوه. ده چې سجده وکړه، ډېر وخت همداسې پر **سجده** پروت و. چا ور څخه پوښتنه وکړه: اې د خدای پیغمبره! سجده دې ځنگه اوږده کړه؟**

پیغمبر ﷺ وویل: لمسی مې پر اوږو سپور و. سجده مې ځکه اوږده کړه چې هغه خپله خوشحالي وکړي.

**موضوع:** کوکوښ **توری:** ښ


۱۴ اونۍ — ۱ لوست

ښ

| سر پوښ | سرپوښ |
| --- | --- |
| بالا پوښ | بالاپوښ |
| نا خوښ | ناخوښ |
| اوښ | اوښ |

کوکوښ

ښاپيرۍ خپل ورور اجمل ته وويل د کوکوښ شعر دې اورېدلی دی؟

اجمل ووېل نه ښاپيرۍ ووېل زه به درته د کوکوښ شعر ووایم

اجمل ووېل خومره ښکلی شعر و ښاپيرۍ ووېل مننه

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل کې د /ښ/ غږ پېژندل.
۲. د (ښ) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکيبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ يې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځينې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پيل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۴. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)**

۱. د ترکيب د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه يې او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ **کوکوښ** (ملاچرگک)، **ججوغه** (د مرغانو د سرتاج ته وايي)، **شخه پخه** (کلکه، سخته)
۲. بيا زده کوونکو ته و وايئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه يي او يوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: چا د کوکوښ شعر ووايه؟
ځواب: ښاپيرۍ.
۳. پوښتنه: کوکوښ ته يې څوک وروادول؟
ځواب: چونګښه
٤. ذهني پوښتنه: څنګه چې له خپل خور او ورور سره مينه کوئ، که له نورو همزولو سره هم ښه وچلېږئ، ګټه به يې څه وي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقيقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکيب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**موضوع:** کوکوپښ، له ماشومانو سره مینه **توری:** ښ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ښ/ غږ پېژندل.
۲. د (ښ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ښ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: **(ښار، مښوکه، پښ)**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار(۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړی برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **مینه**( محبت)، **نانځکه** (ناوکی، ګوډی) ، **حوصله**( صبر).
۲. بیا زده‌کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده‌کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
* څه فکر کوې اجمل ته به یې څه راوړي وي؟



** بابا به ورته څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: د ښاپېرۍ بابا له چا سره مینه کوله؟
ځواب: له ماشومانو سره.
۳. پوښتنه:ښاپېرۍ ته یې بابا څه شی اخیستی وو؟
ځواب: نانځکه
٤.ذهني پوښتنه: که څوک له تاسو سره په مینه خبرې وکړي، څه احساس کوئ؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**:د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دي د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** ګلان  **توری:** ګ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ګ/ غږ پېژندل.
۲. د (ګ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ او رېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **بڼ**(باغ)، **ښایسته** (ښکلی)، **خوښول** (ښه اېسول).
۲. بیا زده‌کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره



| | |
|---|---|
| ور دګ | وردګ |
| بـ زرګ | بزرګ |
| برګ | برګ |
| چرګ | چرګ |

ګلان

ګلاب خان بڼ لري. په بڼ کې یې رنګ رنګ ګلان شته. سره، سپین، ژیړ، نارنجي او ګلابي ګلان. هر ګل ښایسته ښکاري. ګلاب خان ګلان خرڅوي. هغه یې پیسې ګټي. ځینې ګلان ښه بوی لري. له ځینو ګلانو څخه عطر جوړېږي. د سنځلو، ګلابو او نارنجو عطر ښه بوی لري. خلک دغه عطرونه خوښوي. د شاتو مچۍ له ګلانو څخه شات جوړوي.

۸۱

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: له ګلانو څخه څه شی جوړېږي؟
ځواب: عطر.
۳. پوښتنه: د شاتو مچۍ له ګلانو څخه څه شی جوړوي؟
ځواب: شات.
٤. ذهني پوښتنه: که تاسې ګلان خرڅوئ نو له خلکو سره به څه ډول چلند کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** ګلان او له ماشومانو سره مينه **توري:** ګ

### د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ګ/ غږ پېژندل.
۲. د (ګ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)
۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ګ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **ګلان، هګۍ، پړانګ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)
۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیایې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)
۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي

### ۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)
**له اورېدلو مخکې**
۱. دلاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **مساوات** (برابري)، **سجده** (په لمانځه کې تندی پر ځمکه ایښودل)، **چلند** (رویه).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟
**د اورېدلو په پرمهال**
۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو نه دغه پوښتنې وکړئ.
* پیغمبر ﷺ به ورته څه ویلي وي؟




**څه فکر کوئ، پیغمبر ﷺ به ولې سجده اوږده کړې وي؟
**له اورېدلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: پیغمبر ﷺ څه ویلي وو چې د لور او زوی سره څه ډول چلند وکړئ؟
ځواب: یو ډول چلند وکړئ.
۳. پوښتنه: پیغمبر ﷺ ولې سجده اوږده کړې وه؟
ځواب: ځکه چې لمسی یې پر اوږه ناست و.
٤. ذهني پوښتنه: له لور او زوی سره یو ډول چلند کول ولې مهم دي؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)
۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### بیاکتنه او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ښ، ګ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ښ، ګ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ښ، ګ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور وپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل(۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱ چونګښه، ۲. پخه، ۳. ښه، ٤ . خرخوي.**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار(۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په دریو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او دري جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **نورو ته د درناوی کولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ش،غ، ز، چ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ش، غ، ز، چ/غږونو پېژندل.
۲. د (ش،غ، ز، چ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

**۱. د غږونو اوریدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورو پېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

**٤. املا (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **چونګښه** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **چون ـګـ ـښه** دا



کلمه ۳ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې(۷)کلمو لپاره هم ترسره کړئ:
**کوکوښ، هوښیار، خوښه، زیارکښ، اتڼ، چیندرې، مرۍ.**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **شین خالي چونګښه یوسه.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.
- **ستا ججوغه شخه پخه.**
- **ګلاب خان ګلان خرڅوي.**
- **ځینې ګلان ښه بوی لري.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**پنځلسمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** مورک او پیشو **توري:** ړ،خ،ش، غ، ز، چ، ښ، ګ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

١. د کلمو په پیل، منځ او پای کې / ړ،خ،ش، غ، ز، چ، ښ، ګ/ غږونو پېژندل.
٢. د (ړ،خ،ش، غ، ز، چ، ښ،ګ) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
٣. له نوو تورو سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د **خاله، راغله، خوري، غواړم، منډه، وړی، ښکلی** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
٧. د دې اونۍ کلمې به سمې ولیکلای شي.
٨. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
٩. د (ړ،خ،ش،غ،ز،چ،ښ،ګ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- شا او خوا ته پام وکړي

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ړ،خ،ش،غ،ز،چ،ښ،ګ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکي یا پنسل قلم سره د(ړ،خ،ش،غ،ز،چ،ښ،ګ)تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

**د دې اونۍ ځانګړې یادښتونه**

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او درې جملې ورته ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

## مورک او پیشو

**لومړۍ برخه**

یو وخت په یوه باغ کې یوې کوچنۍ ښکلې پیشو او یو مورک ژوند کاوه. تل به یې په باغ کې لوبې کولې. یوه ورځ یې په باغ کې یوې او بلې خوا ته منډې وهلې. مورک په یو **سوري** کې ننوت. کله چې پیشو مورک ولید، نو ورته ویې ویل:*

مورک جانه،زه هم غواړم په سوریو کې ننوتل زده کړم.

مورک ورته وویل ته ډېره **غټه** یې، نه شې کولای چې په سوریو کې ننوزې، ځکه ته یوه پیشو یې، دا کار ستا په درد نه خوري.

پیشو خپله خبره تکرار کړه، ویې ویل:

پروا نه کوي، زه به څه ناڅه په غټو سوریو کې ننوتل زده کړم. خو غواړم چې هرو مرو په سوریو کې ننوتل زده کړم. *

پیشو د هرې ورځې په **تمرین** سره وکولای شول، په سوریو کې ننوتل زده کړي.

**دوهمه برخه**

یوه ورځ مورک او پیشو لوبې کولې په دې وخت کې د پیشو په لیوه سترګې ولګېدې چې د دوی خوا ته را روان دی. مورک ته یې وویل:*

هله، مورکه! لیوه راغی، دواړو په منډو پیل وکړ. لږه شېبه وروسته مورک په یوه کوچني سوري ننووت، خو پیشو وېرېدلې وه، په منډو شوه، **لیوه** هم ورپسې ډېرې منډې ووهلې، پیشو نوره ستړې شوې وه، لیوه هم ډېر ورته نژدې شوی و. ** په دې وخت کې پیشو خپلې مخې ته یو سوری ولید چې په دې سوري به باغ ته اوبه رالنوتې، پیشو په **چټکۍ** سره د سوري په لوري منډه کړه او په سوري ننوته، له باغ څخه ووته. او ځان یې له لیوه څخه **وژغوره**.

**موضوع:** ګیدړه او ښارو **توري:** ړ، خ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د / ړ، خ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ړ،خ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اوریدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)

#### له لوستلو مخکې

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ګیدړه** (یو حیوان دی)، **شر** (ضرر)، **مرسته** (کومک، لاسنیوی)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

#### د لوستلو پر مهال

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره


۱۵ اونۍ ۱ لوست
ګیدړه او ښارو
یوه ورځ ماتي ښارو پر ښاخ ناسته وه. په ونه کې غومبسو هم خاله جوړه کړې وه. ګیدړه له کومې خوا څخه راغله. پر ښارو یې سترګې ولګېدې. تر ونې لاندې ورته تاوېده را تاوېده. ګیدړې غوښتل چې پر ښارو باندې شر وکړي. ښارو لاندې را ولوېږي او دا یې وخوري. غومبسې له ښارو سره مرسته وکړه. ګیدړه یې پر پوزه وچیچله. ګیدړه وتښتېده. ښارو یې له شره خلاصه شوه.
۸۵

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

#### له لوستلو وروسته

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: ښارو چېرته ناسته وه؟
ځواب: د ونې پر ښاخ
۳. پوښتنه: ګیدړه ولې وتښتېده؟
ځواب: ځکه چې غومبسې وچیچله.
۴. ذهني پوښتنه: څنګه ځانونه وساتو چې مچۍ مو ونه چیچي؟

### بیاکتنه او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**—د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** ګیدړه او ښارو او پیشو او موږک **توری:** ش، غ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ش، غ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ش، غ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکې د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ش، غ/ غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توري د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه‌یي بیا په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**شمع، پیشو، خط کش، غر، تغر، جغ**)

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **سوړی** (غار)، **غټه** (لویه)، **تمرین** (په تکرار دیوه کار کول)
۲. بیا زده‌کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده‌کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله پوښتنې وکړئ.



* څه به یې ویلي وي؟
** پیشو به بیا څه کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: په باغ کې څه شي ژوند کاوه؟
ځواب: پیشو او موږک.
۳. پوښتنه: پیشو د هرې ورځې په تمرین سره څه زده کړل؟
ځواب: په غټو سوریو کې ننوتل.
٤. ذهني پوښتنه: د خطر په وخت کې شاوخوا ته پام کول، څه ګټې لري؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده‌کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده‌کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالي ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** دمچيو ځاله **توری:** ز، چ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل کې د / ز، چ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ز، چ) تورو لوستل او ليکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکيبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اوریدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ يې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځينې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پيل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۴. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوود کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)**

۱. د ترکيب د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه يې او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دويم متن (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **مچو** (ښکلول)، **ولوېده** (راوغورځېده)، **تاک** (د انګور ونه).
۲. بيا زده‌کوونکو ته و وايئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره



۱۵ اونۍ ۲ لوست

ز ز ز
چ چ ج

| ز لمی | زلمی | چې چل | چيچل |
|---|---|---|---|
| بز گر | بزگر | مـ چې | مچې |

د مچيو ځاله

زلمي تر ونې لاندې کتاب لوست. پر ونه د انګورو تاک غځېدلی و. زلمي ورپورته شو چې انګور وشکوي. څه چې ورې شکاوه، مچې وچيچه. زلمي چيغه کړه. انګور يې له لاسه ولوېدل. ملګرو يې رامنډې کړې. د زلمي لاس ته يې وکتل. يوه ملګري وويل: ته خو پر مچيو ډېر ګران يې. وګوره، څنګه يې لاس درته مچو کړ. زلمي خپل درد هېر کړ او په خندا شو.

۸۶

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په يوازې او جوړه يې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: زلمي تر ونې لاندې څه کول؟
ځواب: کتاب يې لوست.
۳. پوښتنه: زلمي ولې چيغه کړه؟
ځواب: ځکه چې مچۍ چيچلی و.
٤. ذهني پوښتنه: زلمي بايد څه کړي وای چې مچۍ نه وای چيچلی؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقيقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکيب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**موضوع:** د مچیو ځاله او پیشو او موږک **توری:** ښ، ګ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ښ، ګ/غږونو پېژندل.
۲. د (ښ ،ګ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د ښ، ګ/ غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **ښار، منبوکه، پښ، ګلان، هګۍ، پړانګ**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب(۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **لیوه** (یو وحشي حیوان دی)، **چټکي**(تېزي) **وژغوره**(خلاص کړ)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو نه دغه پوښتنې وکړئ.
* موږک ته به یې څه ویلي وي؟



** پیشو به ځنګه ځان خلاص کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: څه شی د موږک او پیشو خوا ته روان و؟
ځواب: لیوه
۳. پوښتنه: موږک څه وکړل؟
ځواب: په کوچني سوري ننوت.
٤. ذهني پوښتنه: کله چې پیشو له لیوه څخه منډې وهلې، ځنګه وتوانېده چې په کوچني سوری کې ننوځي؟

**۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغوی ته هغه جملې وښیئ چې باید د تمرین په کتابونو کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توري او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ړ،خ ش،غ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ړ، خ، ش، غ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ړ، خ، ش، غ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معيار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معيار ۸۰٪)
۵. د يوې لنډې کيسې ليکل (رسمول، د کلمو او جملو ليکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقيقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه يې د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژنئ.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږونه يې وايي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقيقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بيا يې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.

ځوابونه: **۱. سترګې، ۲. وچیچله، ۳. کتاب، ٤. مچی**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د تېرې ورځې د کيسې په باره کې فکر وکړي چې کيسه د څه په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته دې د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه يي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای لولي.
۴. زده کوونکي يې په جوړه يي ډول لولي.
۵. زده کوونکي يې پخپله لولي.

**٤. نوښتي ليکل (۱۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کيسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د اړوند کيسو په اړه يې څه په ياد پاتې دي.
۳. دوو يا دريو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه يې چې په ياد پاتې دي، نورو ته يې ووايي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه يې چې د کيسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګيوالو ته و وايي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کيسې کرکټر وای، څه به يې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په درې جملو کې نورو ته ووايي او پر تختې يې وليکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کيسو په اړه ليکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کيسو په اړه يو انځور رسم کړي او درې جملې ورته وليکي. ورته ووایاست چې کيسه دې **شاوخوا ته د پام کولو** په اړه وليکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه يې ليکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتيا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقيقې وروسته له ځينو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کيسې نورو ته ووايي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دي په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې يې څو کلمې او جملې وليکي.

**موضوع:** د تیرو اونیو، تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ز، چ، ښ، گ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ز،چ،ښ،گ/غږونو پېژندل.
۲. د (ز، چ، ښ، گ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
۴. د متن سم لوستل د درس سموالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو پېژندل، د غږونو او تورو تر منځ اړیکې (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس به د غږونو او تورو د پېژندلو تمرین ترسره کړو.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې مو د تورو چوکاټ ته وگورئ. په چوکاټ کې هره کرښه یوه شمېره لري. زه به لومړی د کرښې شمېره وایم، بیا به د هماغه کرښې د یوه توري غږ وایم. تاسو له هماغه توري حلقه تاو کړئ. ښوونکی له زده کوونکو سره یو مثال تر سره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونه مو را واخلئ. ښوونکی په لومړي کرښه کې د/ش/غږ وایي او زده کوونکي د(ش) له توري څخه حلقه تاووي. ښوونکی او زده کوونکي دي همدا کار په نورو کرښو کې د لاندې غږونو لپاره ترسره کړي.
**غږونه:** ۲. /گ/ ۳. /ر/ ۴. /غ/ ۵. /ښ/ ۶. /خ/ ۷. /ز/ ۸. /چ/
۴. په پای کې ښوونکی د زده کوونکو د تمرین کتابونه گوري او نومرې یې د دوامداري ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### ۲. د آشنا کلمو پیدا کول (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس به د آشنا کلمو د پیدا کولو تمرین ترسره کړو.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې مو ځینې انځورونه وینئ. د هر انځور لاندې څلور کلمې لیکل شوي دي. تاسو به د هر انځور لاندې له هغې کلمې څخه حلقه تاووئ چې د هماغه انځور نوم دی . ښوونکی له زده کوونکو سره یو مثال ترسره کوي.
۳. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونه مو راواخلئ او د هر انځور لاندې اړونده کلمه په نښه کړئ.
**سمې کلمې:** ۱. شمع ۲. مېز ۳. زمری ۴. غر ۵. تخته ۶. مچ
۴. ښوونکی په ټولگي کې گرځي او له هغو زده کوونکو سره چې ستونزې لري مرسته کوي.

### ۳. د لوستلو د دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یي لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ۴. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.



۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **گلان** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **گـ ـلان** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **ښکلی، گیدړه، ښارو، ښاخ، وزرماتي، شر، ملگري.**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **پر ښارو یې سترگې ولگېدې.**
۶. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړئ.

- **گیدړه یې پر پزه وچیچله.**
- **زلمي تر ونې لاندې کتاب لوست.**
- **هغه چې وړی شکاوه، مچی وچیچه.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وگورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمگړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**شپاړلسمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** کورنۍ **فرعي موضوع:** لیک او لوست، د ډوډۍ خوړلو ادبونه **توري:** ژ، ځ

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې / ژ،ځ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ژ، ځ) تورو سم لوستل او لیکل(د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱۶ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د **برېښنا کورس، بل** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د ( ژ، ځ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسۍ خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- له نورو سره خپل شیان شریک کړي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ژ، ځ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکې یا پنسل قلم سره د(ز،ځ)تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

## د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او څلور جملې ورته ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### د ډوډۍ خوړلو ادبونه

**لومړۍ برخه**

د انځر ګل کورنۍ په کلي کې اوسېده. د ژمي یوه ورځ وه. د انځرګل ماما له خپلو ماشومانو سره د دوی کره راغلل. انځرګل د ماما له اولادونو، غورځنګ او ځلا سره په لوبو سر شو. دومره ډېرې منډې رامنډې یې وکړې چې سخت وږي شول. د غرمې ډوډۍ تیاره شوه. ټولو لاسونه په صابون ومینځل. غورځنګ چې ګوله خولې ته کړه، کوم څه یې وویل: له خولې نه یې ډوډۍ راولوېده. کالي یې **ککړ** شول. ځلا چې له کاسې څخه **ګوله** پورته کوله، سترګې یې کړکۍ ته نیولې وې. انځرګل غټې **مړۍ** اخیستې او ژر ژر یې خوړلې.** همدا وو چې ژبه یې وچیچله. ژبه یې وینې شوه.

**دوهمه برخه**

د انځر ګل مور پاځېده. انځرګل یې تشناب ته بوت. خوله یې ورو مینځله. وینه یې ودرېده. مېلمانه چې ولاړل، د انځرګل پلار ورته وویل: ګوره زویه! زه پوهېږم چې ته ډېر وږی شوی وې. څکه دې ډوډۍ ژر ژر خوړله. خو سړی که هرڅومره وږی هم وي، باید ډوډۍ په کراره وخوري. غټې غټې مړۍ ښې نه وي. څوک چې مړۍ ژویي، خوله باید پټه ونیسي او خبرې ونه کړي. کله چې **ګوله** راخلو، باید کاسې ته وګورو او له خپلې مخې څخه ګوله راواخلو. ګوله به د ګوتو پر **څوکو** اخلو. ټول لاس به په کاسه کې نه ننه باسو. ډوډۍ چې ژویو** **چړپوو** به یې نه. که د خوراک په وخت کې پرنجې یا ټوخې راشي، له دسترخوانه باید ژر مخ بلې خوا ته واړوو. مخې ته مو لاسونه ونیسو او بیا وپرنجېږو یا و ټوخېږو.

**موضوع:** لیک او لوست **توری:** ژ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ژ/ غږ پېژندل.
۲. د ( ژ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **برېښنا** ( برق) ، **بل** (د برق د لګښت پاڼه)، **لوښو** (لورګانو).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره


۱۶ اونۍ ۱ لوست
ژ
ږو ژه روژه
ژ به ژبه
ژ مې ژمی
ژر نده ژرنده
لیک او لوست
مژده او منیژه مکتب ته تللي وي. برقي د برېښنا بل راوړی و. بل يې د دوی پلار ته ورکړی و. دوی چې له مکتب څخه راغلي، پلار يې وویل لوښو! دلته راشئ، دا بل وګورئ. منیژه ژر ورمخ ته شوه. بل يې ولوست. پلار ته يې وویل: دا خو د ژرندې ګرځې د برېښنا بل دی. پلار يې له خان سره وویل که په لیک پوهېدای، پردي بل به مې نه اخیست. زه به خامخا لیک او لوست زده کوم.
۹۱

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: مژده او منیژه چېرته تللې وې؟
ځواب: مکتب ته.
۳. پوښتنه: پلار یې د چا د برېښنا بِل اخیستی و؟
ځواب: د ژرنده ګرې.
۴. ذهني پوښتنه: منېژې له خپل پلار سره د لیک لوست په زده کولو کې څه مرسته کولی شي؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** لیک او لوست او د ډوډۍ خوړلو ادبونه   **توری:** ژ

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ژ/ غږ پېژندل.
٢. د (ژ) توري لوستل او لیکل.
٣. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)

### ١. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

١. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ژ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
٢. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
٣. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

### ٢. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

١. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي دا کلمې په جوړه‌يي بیا په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: ( **ژبه، مژګان، بنداژ**)

### ٣. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

١. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
٢. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**
١. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ککړ**(ناولی)، **ګوله**(مړی)، **مړۍ** (شخوند، ګوله)
٢. بیا زده‌کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
٣. له زده‌کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟
**د اورېدلو پر مهال**
١. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
٢. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
* څه به شوي وي؟



** په انځرګل به څه شوي وي؟
**له اورېدلو وروسته**
١. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
٢. پوښتنه: د انځرګل کورنۍ چېرته اوسېده؟
ځواب: په کلي کې.
٣. پوښتنه: انځرګل ولې ژبه وچیچله؟
ځواب: ځکه چې غټې مړۍ یې اخیستې او ژر ژر یې خوړلې.
٤. ذهني پوښتنه: که مو یو ټولګیوال د خوراک له پاره څه نه وي راوړي خو تاسو راوړي وي، څه به کوئ؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

١. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
٢. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

١. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده‌کوونکي د ې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** وږې سويه　　　**توری:** ځ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل کې د /ځ/ غږ پېژندل.
۲. د (ځ) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکيبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ يې زده کوونکو ته ورو پېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځينې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پيل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۴. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)**

۱. د ترکيب د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه يې او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دويم متن (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ځنګ**(خوا)، **بې حاله** (ناتوانه، بې سېکه)، **ترپکو** (ټوپونو)
۲. بيا زده کوونکو ته و وايئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره




دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په يوازې او جوړه يې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: ځوان به گازرې له کوم ځايه راوړې؟
ځواب: له کلي څخه
۳. پوښتنه: سويه څنګه پرته وه؟
ځواب: بې حاله
۴. ذهني پوښتنه: که څوک وږی وي خو خواړه ورسره نه وي، تاسې به څه کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقيقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکيب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**موضوع:** ورېږ سويه او د ډوډۍ خوړلو ادبونه **توری:** ځ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د / ځ / غږ پېژندل.
۲. د (ځ) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ځ / غږ د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **ځنګل، انځر، ورېځ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)

۱. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دويم متن تکرار (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په يوازې او جوړه يي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دويمه برخه (۱۰ دقيقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندينيو کلمو په هکله بحث وکړئ: دګوتو په **خوکو**(دګوتو په سرونو)، **چرپول**(دګولې د ژو ولو آواز)، **ګوله**(مړی)
۲. بيا زده کوونکو ته و وايئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کيسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.
* هلته به يې څه کړي وي؟



** تاسې څه فکر کوئ چې نور به يې څه ويلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: چا د انځرګل خوله وروميناځله؟
ځواب: مور يې.
۳. پوښتنه: که د خوراک په وخت کې ټوخی راشي، څه بايد وکړو؟
ځواب: مخ بلې خوا ته واړوو او لاسونه مو خولې ته ونيسو.
٤. ذهني پوښتنه: ستاسو په نظر د ډوډۍ خوړلو په وخت کې نور کوم ټکي بايد په پام کې ونيسو؟

### ۵. د جملو سم ليکل (۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعاليت ولري. هغه جملې ورته وښيئ چې بايد د تمرين په کتاب کې يې تمرين کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې جملو ليکل په همدې **اونۍ کې** تمرين کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولئ. توري او جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار  **توري:** ژ، ځ

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ژ، ځ/غږونو پېژندل.
٢. د ( ژ، ځ) تورو لوستل او لیکل.
٣. د خانه خالي جملو سم لوستل(د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ١. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

١. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور وپېژني.
٢. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ٢. د خانه خالي جملو لوستل(۵ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
٢. ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.

ځوابونه: **١.مکتب، ٢. راوړي و ٣. سویه ٤. بې حاله**

### ٣.د لوستلو د لومړي متن تکرار (١٠ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي پخپله متن لولي.
٢. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (١۵ دقیقې)

١. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



٢. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګورې او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
٣. دوو یا درېو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او څلور جملې ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **له نورو سره د خپلو شیانو د شریکولو** په اړه ولیکي.
٧. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
٨. څو دقیقې وروسته له څینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونيو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ز، ڇ، ښ ګ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /ز،ڇ،ښ،ګ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ز،ڇ،ښ،ګ) تورو لوستل او ليکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معيار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معيار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم ليکل (د سموالي معيار ۹۰٪).

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه يې د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. د توري بڼې پر تختې وليکئ، ورته اشاره کوي او غږونه يې ووايئ.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)**

۱. د هجاوو د تمرين د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دويم متن تکرار (۱۰ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووايياست چې د تېرې ورځې د کيسې په اړه فکر وکړي چې کيسه د څه په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه يي لولي.
۴. زده کوونکي متن يوازې لولي.

**٤. املا (۱۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووايئ چې نن به ځينې کلمې او جملې وليکي.
۲. زده کوونکو ته ووايئ چې درسي کتاب بند او د تمرين کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووايئ چې د **ژمني** کلمه ولولي او هجاوې يې د لاسونو په حرکتونو سره بيلې کړي. **ژ مـ ـني** دا کلمه



۳ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووايئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري يې د تمرين په کتاب کې وليکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **مژده، منيژه، ژر ژر، ليک، بربښنا، بل، کور.**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله يې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **مژده او منيژه مکتب ته تللي وې.**
۶. زده کوونکي جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.
۷. دا کار د لاندې دريو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **برقي د بربښنا بل راوړی و.**
- **يوه ورځ يې يوه ځنګلي سويه وليده.**
- **سويه پر لاره بې حاله پرته وه.**

۸. زده کوونکو ته ووايئ چې د تمرين کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامداري ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نيمګړې جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**اولسمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** کورنۍ **فرعي موضوع:** د خبروکولو ادبونه **توري:** ډ،څ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې / ډ،څ / غږونو پېژندل.
۲. د (ډ، څ) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **ډوډۍ، ګېډۍ، برکت، ډنډ، مزل، څار** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ډ،څ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسې خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- له خلکو سره ښې اړیکې ټینګې کړي

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ډ، څ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کړکې یا پنسل قلم سره د(ډ،څ) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

**د دې اونۍ ځانګړي یادداشتونه**

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او څلور جملې ورته ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**د خبرو کولو ادبونه**

**لومړی برخه**

اڅک له پلار سره څپاند دوی کره تللی و. هغه په باغچه کې له څپاند سره لوبې کولې. غرمه شوه. د **ډنډ** پر غاړه یې ډوډۍ وخوړه. له ډوډۍ نه وروسته، د اڅک پلار له خپل ملګري سره خبرې کولې. څپاند هم له اڅک سره کیسې کولې. خو هغه به د خبرو په وخت کې اڅک ته خوله ورنژدې کوله. له خولې یې د پیازو بوی پورته کېده.* د پیاز بوی د اڅک **خوا ګرځوله**.هغه به مخ بلې خواته اړاوه. یا به یې پزه نیوله، خو څپاند په دې نه پوهېده چې خوله باید لږ لېرې ونیسي. اڅک چې به یوه نیمه خبره کوله، څپاند به یې د خبرو په منځ کې ورولوېد.** اڅک ته به یې د خبرو **وار** نه ورکاوه. څپاند په لوړ غږ خبرې کولې.

**دوهمه برخه**

آخر کې یې پلار ورباندې غږ وکړ: څپانده زویه! غږ دې لږ ټیټ کړه. غږدې دومره لوړ دی چې زه او کاکا دې یو د بل خبرې نه شو اورېدلی. څپاند غږ ټیټ کړ. خو دا ځل یې اڅک **خپه** کړ.* ده اڅک ته یوه **کیسې** وویله. اڅک یې په ځواب نه پوهېده. څپاند ورته وویل: ته خو په هېڅ شي نه پوهېږې. ای **ټنبله**، ټنبله. اڅک دوی چې خپل کور ته تلل، په لاره کې یې پلار ته ټوله کیسه وکړه او ویې ویل: نور به د څپاند دوی کره نه ځم.** پلار یې وویل: څپاند ښه کار نه دی کړی. خو هغه ستا ملګری دی. بله ورځ ورته ووایه چې په خبرو یې خپه شوی وې. دا هم ورته ووایه چې د خبرو په وخت دې خوله لېرې نیسي او بل ته دې هم د خبرو وار ورکوي.

**موضوع:** مرسته    **توری:** ډ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ډ/ غږ پېژندل.
۲. د ( ډ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **لو** (رېبل)، **ګېډۍ** (د غنمو یا جوارو یوه غېړه)، **برکت** (زیاتېدل، د کارونو آسانېدل)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.


۱۷ اونۍ    ۱ لوست

ډ

کډ کار

ډېوه له ښوونځي څخه کور ته راغله. ګوري چې مور یې کالي ګنډي. ډېوې ووېل مورې! پلار مې چېرته دی؟
مور یې ووېل د غنمو لو ته تللی دی. ډېوې ووېل چې ډوډۍ وخورم، بیا به زه هم ورشم. ډېوې ډوډۍ وخوړه. د غنمو پټي ته ورغله. پلار یې د غنمو ګېډۍ راغونډولې. ډېوې هم ورسره ګېډۍ راغونډې کړې. کار ژر تمام شو. پلار یې ووېل خیر یوسې لورې! ګډ کار برکت لري.

۹۷

۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: ډېوه له کوم ځای څخه کور ته راغله؟
ځواب: له ښوونځي څخه.
۳. پوښتنه: د ډېوې پلار څه کول؟
ځواب: د غنمو ګېډۍ یې راغونډولې.
۴. ذهني پوښتنه: ستاسو مور او پلار ستاسو په کومو کارونو خوشحالېږي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** مرسته او د خبروکولو ادبونه **توری:** ډ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ډ/ غږ پېژندل.
۲. د (ډ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل(د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ډ/ غږ د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب(۵دقيقې)**

۱. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه:( **ډوډۍ، ګېډۍ، ډنډ**)

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقيقې)**

۱. زده کوونکي دې متن پټپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه يي او يوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقيقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندينيو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ډنډ**(ولاړې اوبه)، **خوا ګرځېدل** (د زړه ډکېدل)، **وار** (نوبت)
۲. بيا زده‌کوونکو ته و وايئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده‌کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کيسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کيسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
* پر اخک به څه شوي وي؟



** بيا به څه شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: اخک له چا سره لوبې کولې؟
ځواب: له ښپانډ سره.
۳. پوښتنه: د ښپانډ له خولې د څه شي بوی پورته کېده؟
ځواب: د پيازو.
٤.ذهني پوښتنه: د ښپانډ کوم کار ښه نه و او خلک به يې په عذابول؟

**۵. د کلمو سم ليکل (۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووايئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعاليت ولري. هغه کلمې ورته وښيئ چې بايد د تمرين په کتاب کې يې تمرين کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو ليکل په همدې اونۍ کې تمرين کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي د ې په شپږمه ورځ د املا د فعاليت لپاره چمتووالی ونيسي. توري او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**موضوع:** غرڅه　　　**توری:** خ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /خ/ غږ پېژندل.
۲. د (خ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **مزل**(تګ، سفر)، **خار**(پهره، شاوخوا ته په ځیر کتل)، **غرڅه** (هوسۍ، غرڅنی).
۲. بیا زده‌کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره




متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: خانګه له پلار سره چېرته ولاړه؟
　　ځواب: ځنګله ته ولاړه.
۳. پوښتنه: له غره څخه څه راکښته شول؟
ځواب: غرڅې راکښته شوې.
۴. ذهني پوښتنه: که غرڅې په خپلو کې ښه اړیکي ونه لري، څه به وشي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** غرڅه، د خبروکولو ادبونه **توری:** ښ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ښ/ غږ پېژندل.
۲. د (ښ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل. (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ښ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **ښوکی، کښوره، کښ**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **خپه**(مرور)، **تنبل** (نالایق)، **کیسی** ( معما، چیستان)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.
* تاسې څه فکر کوئ چې اڅک به یې په څه خپه کړی وي؟



** پلار به یې څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: پلار ښپانډ ته څه وویل؟
ځواب: ښپانده زویه! غږ دې لږ ټیټ کړه.
۳. پوښتنه: اڅک ولې خپه شو؟
ځواب: ځکه چې ښپانډ ورته تنبل وویل.
ذهني پوښتنه: د خبرو کولو په وخت کې کومو ټکو ته باید پام وکړو؟

**۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توري او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ډ، خ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ( ډ، خ) غږونو پېژندل.
۲. د ( ډ، خ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا یې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. کور، ۲. غنمو ۳. ځنګله ۴. سترې**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او څلور جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **له خلکو سره په ښه توګه د اړیکو نیولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له څینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه  **توري:** ښ، ګ، ژ، ځ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ښ، ګ، ژ، ځ/غږونو پېژندل.
۲. د (ښ، ګ، ژ، ځ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
٥. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته و وایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یي لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ٤. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **ډوډۍ** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **ډو ډۍ** دا کلمه



۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **ګېډۍ، غنم، ګډ، څانګه، څملاستل، څاروي، غرڅه.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **ډېوې ډوډۍ وخوړه.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **ډېوې هم ورسره ګېډۍ راغونډې کړې.**
- **څانګه له پلار سره ځنګله ته ولاړه.**
- **په ځنګله کې تر یوې ونې لاندې کښېناستل.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**اتلسمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** کورنۍ **فرعي موضوع:** د بابر بڼ **توري:** ړ، ق

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پيل، منځ او پای کې / ړ،ق / غږونو پېژندل.
۲. د (ړ، ق) تورو سم لوستل او ليکل (د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
۵. د **ناڅاپه، وارخطا، خواري،ربېل، خطر** کلمو پر معناگانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې وليکلای شي.
۸. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
۹. د (ړ،ق) توري له نورو تورو سره سم ترکيب کړي او د کرسۍ خط پرمخ يې په ښايسته ډول مشق کړي.

**ټولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- د راتلونکې لپاره چمتووالی ونيسي

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ړ، ق) تورو ترکيبي او ښايسته ليکل، مشق او تمرين کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقيقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکيبي او ښايسته ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکې يا پنسل قلم سره د (ړ،ق) تورو ليکل په کورونو کې تمرين کړي.

**د دې اونۍ ځانگړې يادداشتونه**

- يوه کلمه لومړی هجا او بيا ترکيب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعاليت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو يو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرين کړي.
- که ځينو زده کوونکو ته نوښتي ليکل سخت وي، کولای شئ، د ځينو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلا: د دې اونۍ په کيسه کې مو څه خوښ شول؟ آيا تاسو د کيسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شيانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند يو رسم وباسي او څلور جملې ورته وليکي. هغوی وڅارئ او که يې اړتيا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پيل (۵ دقيقې):** ښوونکی دې د هر درس په پيل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولگي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انگېزې رامنځته کول.

**د دويمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**د بابربڼ**

**لومړی برخه**

د جمعې ورځ وه. ورمه او قيس له خپل مور او پلار سره د بابربڼ ته تللي وو. په بڼ کې ډېر ماشومان له خپلو ميندو او پلرونو سره گرځېدل. هره خوا شنه وه. ونې، بوټي، چمن شنه وو او رنگ رنگ گلان هم غوړېدلي وو. د قيس او ورمې پلار ورته د بابر شاه کيسه وکړه. ويې ويل: بابرشاه د دې **سيمې** پاچا و. **تخت** يې په ډيلي کې و خو دا چې کابل يې ډېر خوښ وو، هغه ويلي وو چې* پس له مرگه به يې همدلته ښخوئ. پلار يې ورمې او قيس ته د بابر شاه قبر ور وښود. وروسته قيس او ورمې په چمن کې لوبې کولې چې باغوان ناري کړې: مه شکوه!**

**دوهمه برخه**

د قيس او ورمې پلار ورغی. گوري چې قيس يو سور گل شکولی دی. **باغوان** ورته وويل:* څوک چې د بڼ گلان شکوي، له باغه يې وباسم.
د قيس پلار وويل: قيسه زويه! دا ښه کار نه دی. که هر څوک يو يو گل وشکوي، په بڼ کې به يو گل هم پاتې نه شي. گوره! باغوان کاکا څومره **خواري** کوي. گلان او به کوي، چمن **رېبي**، د ونو توی شوې پاڼې ټولوي چې بڼ ښايسته ښکاره شي. قيس وويل:** بخښنه غواړم. بيا به داسې کار نه کوم. باغوان د قيس پر سر لاس تېر کړ. ويې ويل: آفرين! گل په بوټي کې ښه ښکاري. همداسې نه ده؟ قيس موسکی شو، ويې ويل: همداسې ده کاکا جانه.

**موضوع:** ړلی **توری:** ړ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ړ/ غږ پېژندل.
۲. د ( ړ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته ورو‌پېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ناڅاپه** (یو په یو، نابېره)، **وارخطا** (حیران او ترهېدلی)، **ړلی** (د یخیو ورېځ غونډاري چې په پسرلي کې ورېږي.)
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: په آسمان کې څه ډول ورېځې پیدا شوې؟
ځواب: توري ورېځې.
۳. پوښتنه: وړمې ته چا چترۍ وروړه؟
ځواب: ولي وروړېيې.
۴. ذهني پوښتنه: څنګه کولای شو خپل ځانونه له باران او ړلی څخه په امن کړو؟


ړلی

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** ړلی او بابر بڼ **توری:** ړ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ړ/ غږ پېژندل.
۲. د (ړ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او /ړ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: ( **ړمنځ، کېږدۍ، غوږ**)

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **بڼ**( باغ)، **تخت** (د پادشاهانو د ناستې ځای)، **سیمه**( منطقه، ځای)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
* څه به یې ویلي وي؟



** تاسې څه فکر کوئ چې باغوان به ولې داسې ویلي وي؟ **له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: قیس او ورمه چېرته تللي وو؟
ځواب: بابر بڼ ته.
۳. پوښتنه: پلار یې د چا کیسه ورته وکړه؟
ځواب: د بابرشاه.
٤ • .ذهني پوښتنه: که تاسې باغ ولرئ، څه کوئ چې څوک یې خراب نه کړي؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. هغه کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** بې ځایه لوبې  **توری:** ق

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د / ق/ غږ پېژندل.
۲. د (ق) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ او بېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ګوډۍ** (کاغذباد، باد‌بوه)، **خطر** (څه چې انسان ته تاوان رسولی شي)، **ناڅاپه** (نابېره، یو په یو).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره




دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: یعقوب ته قدسیې څه وویل؟
ځواب: ویې ویل: نه، نه. دا خو خطر لري.
۳. پوښتنه: یعقوب ولې له بامه راوغورځېد؟
ځواب: ځکه چې پاس ګوډۍ ته یې کتل او شا ته روان و.
۴. ذهني پوښتنه: د لوبې له پیلولو مخکې کومو شیانو ته پام کوئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري، په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** بې ځایه لوبې او بابر بڼ  **توری:** ق

### د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ق / غږ پېژندل.
۲. د (ق) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)
۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ق / غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نمونه: ( **قلم، منقل، زنبق**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)
۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای وکړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)
۱. زده کوونکي دا متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)
**له اورېدلو مخکې**
۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **باغوان**(بڼوال، د باغ پالونکی)، **ربړل** (غوڅول، لوکول)، **خواري** (زحمت زیار)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**
۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.



* باغوان به څه ویلي وي؟
** قیس به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: قیس څه کړي وو؟
ځواب: ګل یې شکولی و.
۳. پوښتنه: ګل په څه شي کې ښه ښکاري؟
ځواب: ګل په بوټي کې ښه ښکاري.
ذهني پوښتنه: څه وکړو چې څوک د باغ ګلان ونه شکوي؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)
۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار        **توري:** ړ، ق

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ( ړ، ق) غږونو پېژندل.
۲. د ( ړ، ق) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل(د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. چترۍ ۲. ړلی ۳. پورته ۴. کړ.**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او څلور جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **د راتلونکې لپاره د چمتووالي** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ژ، ځ، ډ، خ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ژ، ځ، ډ، خ/غږونو پېژندل.
۲. د (ژ، ځ، ډ، خ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ٪۹۵).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ٪۹۰).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ٪۹۰).

**۱. د غږونو اوربدل، د تورو لوستل او لیکل**
**(۵ دقیقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب**
**(۵ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

**٤. املا (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **ورمه** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **ور** **مه** دا کلمه ۲



هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **غړ، چترۍ، ښوونځی، باران، سپوږمۍ، ولي، وارخطا.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **ولي ورمې ته چترۍ وروړه.**
۶. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **سخته ږلۍ ووربده.**
- **ګوډۍ یې هوا ته پورته کړه.**
- **الله (ج) یعقوب روغ کړ.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**د نولسمې اونۍ بیا کتنه** **موضوع:** ښوونځی **فرعي موضوع:** د وخت ارزښت **توري:** ف، ڼ

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې / ف،ڼ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ف، ڼ) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د **خرطوم، ژوبڼ، خروار، تخم، مُربا، للون** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ف، ڼ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسۍ خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- د خپلو کارونو د ترسره کولو لپاره مهال ویش جوړ کړي

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ف،ڼ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کړکې یا پنسل قلم سره د(ف،ڼ)تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

## د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا یې ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او څلور جملې ورته ولیکي. هغوی وځارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### د وخت ارزښت

**لومړۍ برخه**

ښوونکي فاروق شاګردانو ته وویل چې وخت تر سروزو هم **قیمتي** دی.ځکه چې په وخت سره سره زر پیدا کولی شو. خو* په سرو زرو سره تېر شوی وخت نه شو اخیستی. دغه راز ښوونکي فاروق شاګردانو ته وویل: یو بزګر د غنمو له فصل څخه په **خروار**ونو حاصل اخلي.

ځکه چې د ځمکې جوړول، د **تخم** کرل، اوبه کول.... دا ټول به یې په خپل خپل وخت کړي وي. ګرانو شاګردانو، که د نن کار سبا ته پرېښودل شي، څه به وشي؟ په دې پوښتنه کې تاسو هم فکر وکړئ، زه به هم فکر په کې وکړم.**

**دوهمه برخه**

ښوونکي فاروق او شاګردانو د پوښتنې په باره کې فکر کړی وو. فهیم وویل: معلم صاحب! که د نن کار سبا ته پرېښودل شي ښه کار نه دی. ښوونکي پوښتنه وکړه چې ولې ښه کار نه دی؟* فهیم وویل: ځکه چې د سبا کار به بیا بل سبا ته پاتې شي. ښوونکي فاروق وویل: افرین فهیمه، د ښې منځ دې وویشت. ګرانو شاګردانو فهیم ته لاسونه و پړکوئ. شاګردانو فهیم ته لاسونه و**پړکول**. ښوونکي وویل: ګورئ شاګردانو، د هر کار لپاره وخت وټاکئ. مثلا: سبق ویل، کورنۍ دنده ترسره کول، د کورنۍ له غړیو سره مرسته او آرام کول. ښتیا** د مناسبو لوبو لپاره هم وخت وټاکئ. که یو باغوان د باغ بوټو، ونو او ګلانو ته په خپل خپل وخت، اوبه او سره ورکړي، **للون** په کې وکړي، باغ به یې ښه **حاصل** ولري. او که داسې ونه کړي، باغ به یې وچ شي.

**موضوع:** فیل    **توری:** ف

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د / ف/ غږ پېژندل.
۲. د ( ف) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **خرطوم** (د فیل د مخ لاندینۍ برخه چې د نل په څېر اوږده ده.) **ژوبڼ** (باغ وحش، هغه ځای چې وحشي ژوي په کې ساتل کېږي). **پلن** (لوی او هوار)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره



فیل

فیل یو ځنګلي او قوي ځناور دی. فیل لنډه لکۍ او اوږد خرطوم لري. فیل خواړه او اوبه په خرطوم سره خولې ته وړي. فیلان لښت او پلن غوږونه لري. فیلان ډلې ډلې ګرځي. فیلان په ګډه له ځانه دفاع کوي. د هند او افریقا په ځنګلونو کې فیلان ډېر دي. فیلان ډېر درانه بارونه وړلی شي. په پخوا وختونو کې تجارانو مالونه په فیلانو لېږدول. د افغانستان په ژوبڼ کې هم یو فیل و.

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: فیل څه ډول ځناور دی؟
ځواب: فیل یو ځنګلي او قوي ځناور دی.
۳. پوښتنه: فیلان په کوم ځای کې ډېر دي؟
ځواب: د هند او افریقا په ځنګلونو کې.
۴. ذهني پوښتنه: که تاسې فیل ولرئ، هره ورځ به کوم کارونه کوئ چې فیل ښه وساتئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** فیل او د وخت ارزښت **توري:** ف

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ف/ غږ پېژندل.
۲. د (ف) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقيقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ف/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بیا يې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**فیل، شفتالو، ظریف**)

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقيقې)**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه يي او یوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو د متن لومړۍ برخه (۱۰ دقيقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **قیمتي** (ګران بیه) **خروار** (۸۰ منه یو خروار کېږي)، **تخم** (زړی، دانه)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱. کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
* ښوونکي به نور څه ویلي وي؟



** ستاسو په فکر د دې پوښتنې ځواب به چا موندلی وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: وخت ترڅه شي قیمتي دی؟
ځواب: تر سرو زرو.
۳. پوښتنه: بزګر د کرکیلې کارونه څنګه کوي؟
ځواب: ټول کارونه په خپل خپل وخت کوي.
٤. ذهني پوښتنه: تاسې کوم کارونه په کوم وخت کې کوئ؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې يې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع: بڼ توری: ڼ**

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ڼ/ غږ پېژندل.
۲. د (ڼ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

**یادونه: دا غږ د کلمې په سر کې نه راځي.**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او د پای غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره ختمېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **بڼ**(باغ)، **مُربا** (له مېوو څخه جوړه شوې خواږه خواړه)، **میدان وردګ** (د کابل په څنګ کې یو ولایت دی.)
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.



۱۹ اونۍ ۳ لوست

| | |
|---|---|
| ترکاڼ | تر کاڼ |
| خدراڼ | خد راڼ |
| ګلبڼ | ګل بڼ |
| شکوڼ | شکوڼ |

د منو بڼ

د زما پلار یو ښکلی بڼ لري. د دوی په بڼ کې د منو ونې دي. د دوی بڼ ژېړې او سرې مڼې لري. ژېړې او سرې مڼې ډېرې خوندورې وي. په میدان وردګو کې د منو ډېر باغونه دي. په بڼ کې د منو ونې کنار کنار ولاړې وي. په منې کې د ونو ژېړې پاڼې ښکلې ښکاري. د منو او نورو مېوو خوړل ګټه لري. له منو څخه خلک مربا هم جوړوي. د منو مربا خوندوره او خوږه وي. زما مربا خوښېږي.

۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: د منو ډېر باغونه چېرته دي؟
ځواب: په میدان وردګو کې.
۳. پوښتنه: په منې کې د ونو پاڼې څنګه کېږي؟
ځواب: رنګ یې ژېړ اوړي او ښکلي ښکاري.
۴. ذهني پوښتنه: د ونو او بوټو د اوبولو، سره ورکولو، او پاللو له پاره مهال وېش څه ګټې لري؟

**تکرار او کورنی دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنی دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** بڼ او د وخت ارزښت **توري:** ڼ

### د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ڼ / غږ پېژندل.
۲. د (ڼ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)
۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ڼ / غږ د کلمې په منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **پاڼې، مڼې، بڼ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب(۵دقیقې)
۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)
۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)
**له اورېدلو مخکې**
۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: د **لاسونو پړکول**(چکچکې کول)، **للون** (پوجي، خبشاوه)، **حاصل** (د خوارۍ نتیجه، د مېوو او غلو را ټولول).
۲. بیا زده کوونکو ته و وایئ چې دا کلمې معنا او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**
۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو نه دغه پوښتنې وکړئ.



* فهیم به څه ځواب ورکړی وي
** استاد به نور څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: ښوونکي فاروق زده کوونکو ته د څه شي په اړه خبرې کولې؟
ځواب: د وخت د ارزښت په اړه.
۳. پوښتنه: فهیم څه وویل؟
ځواب: که د نن کار سبا ته پرېښودل شي، ښه کار نه دی.
ذهني پوښتنه: د مهال وېش جوړول ( د کارونو د ترسره کولو لپاره د وخت ځانګړي کول) څه ګټې لري؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)
۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار      **توري:** ف، ڼ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ف، ڼ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ف، ڼ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وايي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)**

ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا یې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. ډلې ډلې ۲. بارونه ۳. منې ٤. ګټه.**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یې ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یې ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.




۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووايي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او څلور جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **د مهال وېش جوړولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووايي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ډ، ځ، ړ، ق

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د (ډ، ځ، ړ، ق) غږونو پېژندل.
۲. د (ډ، ځ، ړ، ق) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

**۱. د غږونو اوربدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

**٤. املا (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **فیل** کلمه ولولي او هجاوې یې د



لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **فیل** دا کلمه ۱ هجا لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ:
**افغانستان، ځناور، افریقا، خرطوم، ژوبڼ، غوړونه، لکۍ.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **فیل یو ځنګلي او قوي ځناور دی.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **فیلان ډېر درانه بارونه وړلی شي.**
- **د دوی بڼ ژېړې او سرې منې لري.**
- **د منو او نورو مېوو خوړل ګټه لري.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**شلمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** مرسته **توري:** ژ، ځ، ډ، ځ، ړ، ق، ف، ڼ

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې / ژ، ځ، ډ، ځ، ړ، ق، ف، ڼ / غږونو پېژندل.
۲. د (ژ، ځ، ډ، ځ، ړ، ق، ف، ڼ) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د **بوخت، شنډ، څاروي، ژغورل، قیس، ګاونډی** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ژ،ځ،ډ،ځ،ړ،ق،ف،ڼ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

### ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه

- په ټولنه کې له خلکو سره مرسته وکړي

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ژ،ځ،ډ،ځ،ړ،ق،ف،ڼ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
- زده کوونکي دې له کرکې یا پنسل قلم سره د (ژ،ځ،ډ،ځ،ړ،ق،ف،ڼ) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

### د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او څلور جملې ورته ولیکي. هغوی وخارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### مرسته

#### لومړی برخه

د ګل خېرې **ترور** په کور کې اوړه خلاص شوي وو.
د خپل کور په دروازه کې ولاړه وه چې که څوک راشي او مرسته ترې وغواړي او د هغې د غنمو بوجۍ ژرندې ته یوسي. لږ وخت تېر شوی نه و چې د هغې **ګاونډی** قیس په لاره راغی. هغه کور ته روان وو. ګل خېرې ترور ورته وویل: قیسه زویه! زموږ د غنمو یوه **بوجۍ** به ژرندې ته یونه سې؟
قیس ورته وویل: ولې! به یې نه وړم. زه به خپله بوجۍ کور ته ورسوم. له مورځخه به مې اجازه واخلم او کراچۍ به هم راولم. په کراچۍ کې به یې یوسم. ګل خېرې ترور ورته وویل: زویه! قربان دې شم، په ځوانۍ دې برکت شه. قیس له مور څخه اجازه واخیسته*

#### دوهمه برخه

قیس له خپلې کراچۍ سره د ګل خېرې ترور کور ته راغی. بوجۍ یې په کراچۍ کې واچوله. ژرندې ته یې یوړه. **ژرنده ګري** ته یې وویل: دا د ګل خېرې ترور غنم دي. ورته اوړه یې کړه، زه بېرته راځم.**
په **وار** کې یې ونیسه چې پاتې نه شي. قیس چې بېرته راغی، ګل خېرې ترور ته یې ډاډ ورکړ. ورته یې وویل: تروري! بوجۍ مې په وار کې کېښوده چې غنم اوړه شول، زه یې درته راوړم. په هماغه ورځ مازدیګر ژرندې ته ولاړ. غنم اوړه شوي وو. بوجۍ یې په کراچۍ کې واچوله او د ګل خېرې کور ته یې یوړه. ورته یې وویل: دا ده اوړه مې راوړل. ګل خېره خوشحاله شوه چې ښه ګاونډی لري.
ښېګا ته چې د قیس پلار کور ته راغی، د قیس له دې کار څخه خبر شو. قیس ته یې وویل: **آفرین** زویه! له ګاونډیانو سره مرسته کول ښه کار دی.

**موضوع:** هوښيار بزګر **توری: ژ، ځ**




**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل کې د / ژ، ځ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ژ، ځ) تورو لوستل او ليکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکيبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ يې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځينې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پيل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۴. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)**

۱. د ترکيب د تمرين د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه يې او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **بوخت** (مشغول، لګيا) **ناڅاپه** (نابېره، يوپه يو)، **ژغورل** (خلاصول)
۲. بيا زده کوونکو ته ووايئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرين کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه يې او يوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که ځنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: فضل کاکا چېرته په کار بوخت و؟
ځواب: په ځمکه کې.
۳. پوښتنه: ځيرک ولې چيغه وکړه.
ځواب: ځکه چې يو شی يې وليد.
۴. ذهني پوښتنه: فضل کاکا او ځيرک له خپلې ټولنې سره څه ډول مرسته وکړه؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقيقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکيب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**موضوع:** هوښيار بزګر او مرسته **توري:** ډ، ځ

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /ډ، ځ/ غږونو پېژندل.
٢. د (ډ، ځ) تورو لوستل او ليکل.
٣. له نوو تورو سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

### ١. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

١. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ډ، ځ/ غږونه د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
٢. ښوونکې د توري بڼې پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
٣. بيا، زده کوونکي دا توري د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

### ٢. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)

١. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تخته وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**ډودۍ، ګېډۍ، ډنډ، ځوکۍ، ګڅوړه، کږ**)

### ٣. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقيقې)

١. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
٢. ښوونکې دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکې او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه يي او يوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقيقې)

**له اورېدلو مخکې**

١. د لاندېنيو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ترور**(د مور او پلار خور) **ګاونډي** (همسايه)، بوجۍ(بوری، ګونۍ)
٢. بيا زده کوونکو ته ووايئ چې د دې کلمو معنا ووايي او په جملو کې يې استعمال کړي.
٣. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

١- کيسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
٢. د لوستلو په اوږدو کې د کيسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
* ولې يې له مور څخه اجازه واخيسته؟



** ژرنده ګرې ته به يې څه ويلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

١. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که نه؟ هو/نه
٢. پوښتنه: د ګل خېرې په کور کې څه شی خلاص شوي وو؟
ځواب: اوړه.
٣. پوښتنه: ګل خېرې چا ته وويل چې د غنمو بوجۍ ژرندې ته ورته يوسي؟
ځواب: قيس ته.
٤. ذهني پوښتنه: که تاسو د قيس پر ځای وای، څه به مو کړي وای؟

### ۵. د کلمو سم ليکل (۵ دقيقې)

١. زده کوونکو ته ووايئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعاليت ولري. هغه کلمې ورته وښيئ چې بايد د تمرين په کتاب کې يې تمرين کړي.
٢. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو ليکل په همدې اونۍ کې تمرين کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعاليت لپاره چمتووالی ونيسي. توري او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**موضوع:** قدرت الله او خیرالله **توري:** ړ، ق

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل کې د / ړ، ق/ غږونو پېژندل.
۲. د (ړ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ او ربدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د ویم متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ستړی** (ستومانه)، **ډډ** (سټه، د ونې تنه)، **مننه** (تشکر)
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره



قُدرت الله او خیرالله

قُدرت الله غنم ژرندي ته ورل. ژرنده له کلي څخه ډېره لرې وه. قُدرت الله په لاره کې ستړی شو. لاسي کراچۍ یې د لارې څوا ته ودروله. د ونې ډډ ته یې تکیه وکړه. په دې وخت کې د ده ملګری، خیرالله راغی. ورته یې وویل: قُدرت الله! ته چې ستړی شوی یې، راځه زه به درسره مرسته وکړم. دواړو غنم وار په وار ژرندي ته یوړل. قُدرت الله له خیرالله څخه مننه وکړه.

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: چا غنم ژرندي ته وړل؟
ځواب: قدرت الله.
۳. پوښتنه: قدرت الله ولې د ونې ډډ ته تکیه وکړه؟
ځواب: ځکه چې ستړی شوی و.
۴. ذهني پوښتنه: قدرت الله د خیرالله په مرسته څه وکړای شول؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** قدرت الله او خيرالله **توري:** ف، ړ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /ف، ړ/ غږونو پيژندل.
۲. د (ف، ړ) تورو لوستل او ليکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ف، ړ/ غږونه د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپيژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **فيل، شفتالو، ظريف، پاڼې، مڼه، ژوبڼ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵دقيقې)

۱. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دوهم متن تکرار (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په يوازې او جوړه يي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دوهمه برخه (۱۰ دقيقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندينيو کلمو په هکله بحث وکړئ: **وار**(نوبت) **ژرنده ګرې**(هغه خوک چې په ژرنده کې کار کوي) **آفرين**(شاباسی)
۲. بيا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووايي او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کيسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.



* په کراچۍ به څه يې کول؟
** اڅک به څه کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: ژرنده ګرې ته يې څه وويل؟
ځواب: دا د ګل خبرې ترور غنم دي.
۳. پوښتنه: اوړه يې چېرته يو وړل؟
ځواب: د ګل خبرې کور ته.
ذهني پوښتنه: په کور کلي کې له خلکو سره مرسته کول څه ګټې لري؟

### ۵. د جملو سم ليکل (۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعاليت ولري. هغه جملې ورته وښيئ چې بايد د خپل تمرين په کتاب کې يې تمرين کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو ليکل په همدې **اونۍ کې** تمرين کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توري او جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار    **توري:** ژ، ځ، ډ، څ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ ژ، ځ، ډ، څ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ژ، ځ، ډ، څ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. په نښه ۲. نه شي ۳. ژرندې ۴. سترې.**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یې ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یې ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ۴. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
۶. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او څلورجملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **په ټولنه کې له نورو سره د مرستې کولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له څینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ړ، ق، ف، ڼ

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ړ، ق، ف، ڼ/ غږونو پېژندل.
٢. د (ړ، ق، ف، ڼ) تورو لوستل او لیکل
٣. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ٩٥٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ٩٠٪).
٥. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ٩٠٪).

### ۱. د غږونو پېژندل، د غږونو او تورو ترمنځ اړیکې (۵ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس به د غږونو او تورو د پېژندلو تمرین ترسره کړو.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې مو د تورو چوکاټ ته وګورئ. په چوکاټ کې هره کرښه یوه شمېره لري. زه به لومړی د کرښې شمېره وایم، بیا به د هماغه کرښې دیوه توري غږ وایم. تاسو له هماغه توري حلقه تاو کړئ. ښوونکی له زده کوونکو سره یو مثال ترسره کوي.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونه مو راواخلئ. ښوونکی په لومړۍ کرښه کې د /ړ/ غږ وایي او زده کوونکي د (ړ) له توري څخه حلقه تاووي. ښوونکی او زده کوونکي دې همدا کار په نورو کرښو کې د لاندې غږونو لپاره ترسره کړي.
**غږونه:** ٢. /ق/ ٣. /ځ/ ۴. /ژ/ ۵. /خ/ ٦. /ړ/ ٧. /ف/ ٨. /ڼ/
۴. په پای کې ښوونکی د زده کوونکو د تمرین کتابونه ګوري او نومرې یې د دوامداره ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### ۲. د آشنا کلمو پیدا کول (۵ دقیقې)

١. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې اوس به د آشنا کلمو د پیدا کولو تمرین ترسره کړو.
٢. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې په درسي کتابونو کې مو څېنې انځورونه وینئ. د هر انځور لاندې څلور کلمې لیکل شوې دي. تاسو به د هر انځور لاندې له هغې کلمې څخه حلقه تاووئ چې د هماغه انځور نوم دی. ښوونکی له زده کوونکو سره یو مثال ترسره کوي.
٣. ښوونکی زده کوونکو ته وایي چې د تمرین کتابونه مو راواخلئ او د هر انځور لاندې اړونده کلمه په نښه کړئ.
**سمې کلمې:** ١. ډوډۍ ٢. ژبه ٣. قلم ۴. څوکۍ ۵. فیل ٦. مڼه
۴. ښوونکی په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره چې ستونزې لري، مرسته کوي.

### ۳. د لوستلو د دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي پخپله متن لولي.
٢. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
٣. زده کوونکي متن جوړه یي لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ۴. املا (۱۵ دقیقې)

١. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به څېنې کلمې او جملې ولیکي.



٢. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
٣. ورته ووایئ چې د **څمکه** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **څمـ کـه** دا کلمه ٢ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (٧) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **مشران، ژړ، ناخاپه، نژدې، ماین، وریځ، ګاونډی.**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **فضل کاکا په ځمکه کې په کار بوخت و.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
٧. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړئ.

- **فضل کاکا د ماین ځای په نښه کړ.**
- **قدرت الله غنم ژرندې ته وړل.**
- **ژرنده له کلي څخه ډېره لرې وه.**

٨. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
٩. د زده کوونکو نومرې د دوامداري ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**یوویشتمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** کورنۍ **فرعي موضوع:** حوض **توري:** ح، ذ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې / ح، ذ / غږونو پېژندل.
۲. د (ح، ذ) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل(د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **مېله، مهم، خوندي، خواږه، زېرمه، حیران** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ح، ذ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسۍ خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- ښه ملګري پیدا کړي

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ح،ذ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کړکي یا پنسل قلم سره د (ح، ذ) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

**د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه**

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او پنځه جملې ورته ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**ملګرتیا او دوستي**

**لومړۍ برخه**

یوه **چرچرۍ** او مېږی سره ملګري وو. دواړو په یوه باغ کې خوشحاله ژوند کاوه. یو د بل له حال او احوال څخه به خبر وو. چرچرۍ به ټوله ورځ سندرې ویلې. خو مېږي به کار کاوه.

شپې ورځې به همداسې تېرېدې. اوړی تېر شو او د منې ساړه بادونه را والوتل. په دې وخت کې مېږي څو وارې چرچرۍ ته وویل:* ګوره! د ژمي سړې شپې راروانې دي. سندرې پرېږده. لږ کار وکړه او څه **خواږه** درته راټول کړه.خو چرچرۍ چې سندرو **مسته** کړې وه، د مېږي خبره یې ونه منله.**

**دوهمه برخه**

ژمی راغی. ساړه ورو ورو زیاتېدل. ډېر وخت نه و تېر شوی چې واورې واورېدې. مېږي خپلو کورونو ته ننوتل. د ژمي په سړو شپو ورځو کې به یې له خپلې **زېرمې** څخه خوراک کاوه. چرچرۍ خواړه نه لرل. **حیرانه** وه چې څه وکړي.* هرې خوا ته یې منډې ووهلې. له هر چا څخه یې مرسته وغوښته. خو څه یې ترلاسه نه کړل. مېږي ته ورغله چې مرسته ورڅخه وغواړي. مېږي ورته وویل: که په **دوبي** کې دې کار کړی وای، اوس به دې بې غمه سندرې ویلې.
چرچرۍ سخته خپه شوه.**

مېږي ورته وویل: خپه کېږه مه. زه به یو څه خواړه درکړم. خو په دې شرط چې نور به کار کوې.

**موضوع:** حوض **توری:** ح

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ح/ غږ پېژندل.
۲. د (ح) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې څینې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **ژمنه** (وعده، قول)، **مېله** (د تفریح لپاره یوځای ته په ګډه تلل)، **حوض** (ډنډ)
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.


۲۱ اونۍ ۱ لوست
ح
| | |
|---|---|
| فتاح | ف تا ح |
| اصلاح | ا صـ لا ح |
| نکاح | نـ کا ح |
| جراح | جـ را ح |

حوض

د جُمعې ورځ وه. مليحه او فتاح ډېر خوشحاله وو. پلار يې ژمنه کړې وه چې مېلې ته به ځو. دوی يې مېلې ته بوتلل. فتاح او مليحې د کريکټ لوبه کوله. توپ يې په حوض کې ولوېد. فتاح او مليحه ورغلل چې توپ را واخلي. پلار يې وليدل چې توپ اوبو ته لوېدلی دی. توپ يې ورته را وايست. فتاح او مليحې ته يې وويل: بچيانو! حوض ته نږدې لوبې مه کوئ. خدای ﷻ مه کړه، په کې به ولوېږئ.

۱۲۱

۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: فتاح او ملیحې ته یې پلار څه ویلي وو؟
ځواب: ورته ویلي یې وو چې مېلې ته به ځو.
۳. پوښتنه: توپ یې چېرته ولوید؟
ځواب: په حوض کې.
۴. ذهني پوښتنه: تاسو له خپلو ملګرو سره څه ډول لوبې کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** حوض او ملګرتيا او دوستي **توری:** ح

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /ح/غږ پېژندل.
۲. د (ح) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ح/ غږ د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵دقيقې)**

۱. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه‌يي بيا په يوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**حوض، محراب، تسبيح**)

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقيقې)**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره دا متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه يي او يوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو د متن لومړۍ برخه (۱۰ دقيقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندينيو کلمو په هکله بحث وکړئ: **چرچری**(يوه حشره ده)، **خواړه**(غذا)، **مست**( خوشحاله)
۲. بيا زده کوونکو ته ووايئ چې د دې کلمو معنا ووايي او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده‌کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کيسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کيسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
* چرچری ته به يې څه ويلي وي؟




** په چرچري به څه شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: چرچری به وخت په څه شي تېراوه؟
ځواب: چرچری به وخت په سندرو تېراوه.
۳. پوښتنه: مږي چرچري ته څه وويل؟
ځواب: سندرې پرېږده، لږ کار وکړه او څه خواړه درته راټول کړه.
٤. ذهني پوښتنه: ځنګه کولای شو ښه ملګری پيدا کړو؟

**۵. د کلمو سم ليکل (۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووايئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعاليت ولري. هغه کلمې ورته وښيئ چې بايد د تمرين په کتاب کې يې تمرين کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووايا ست چې په کور کې به د دې کلمو ليکل په همدې اونۍ کې تمرين کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعاليت لپاره چمتووالی ونيسي. توری او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**موضوع:** مهم کاغذونه **توری:** ذ

### د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پیل کې د / ذ/ غږ پېژندل.
۲. د (ذ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)
۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)
۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)
**له لوستلو مخکې**
۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **مهم** (ضروري، ارزښتناک)، **خوندي** (په امن کې)، **بل** (هغه کاغذ چې د برېښنا لګښت په کې لیکل شوی وي).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**
۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره


۲۱ اونۍ ۳ لوست
ذا کر — ذاکر
ذا کـ ره — ذاکره
ذکـ یه — ذکیه
ذ ره بین — ذره بین

مهم کاغذونه
ذکیه وړه ده. په لیک لوست نه پوهېږي. پرون له الماري څخه یو کاغذ رالوېدلی و. ذکیې کاغذ را واخیست او ور یې اور ته واچاوه. مور یې ذاکره په منډه ورغله. په کاغذ لګېدلی اور یې مړ کړ. په دې وخت کې ذکرالله له ښوونځي څخه راغی. مور یې ورته ووېل زویه! ته دا کاغذ وګوره چې د څه شي دی. ذکرالله نیم سوی کاغذ وکوت. د دوی د کور د برېښنا بل و. ذکرالله مور ته ووېل دا خو د کار کاغذ دی. مهم کاغذونه باید په خوندي ځای کې وساتل شي.

۱۲۳

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: له الماري څه شی رالوېدلی و؟
ځواب: یو کاغذ رالوېدلی و.
۳. پوښتنه: کاغذ د څه شي و؟
ځواب: د برېښنا بل و.
۴. ذهني پوښتنه:څنګه کولای شئ مهم او ارزښتناکه شیان سم وساتئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)
۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** مهم کاغذونه او ملګرتیا او دوستي **توری:** ذ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ذ/ غږ پېژندل.
۲. د (ذ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ذ/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **ذره بین، تذکره، کاغذ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړېیي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دوهمه برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **حیران**(هک پک)، **زېرمه** (ذخیره)، **دوبی** (اوړی).
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووايي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه پوښتنې وکړئ.



* ستاسو په فکر څه به یې کړي وي؟
** مېږي به له چرچرۍ سره مرسته کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: مېږي به په ژمي کې خوراک له کومه کاوه؟
ځواب: له خپلې زېرمې به یې خوراک کاوه.
۳. پوښتنه: چرچرۍ ولې حیرانه وه؟
ځواب: ځکه چې خواړه یې نه لرل.
ذهني پوښتنه: که تاسو له ځان سره خواړه ولرئ او ملګری مو یې ونه لري، څه به کوئ؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ح، ذ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ح، ذ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ح، ذ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل(د سمولالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا یې د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. خوشحاله ۲. ورغلل ۳. رالوېدلې ٤. برېښنا**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یې ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یې ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورځخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او پنځه جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **د ښه ملګری** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ړ، ق، ف، ڼ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ړ، ق، ف، ڼ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ړ، ق، ف، ڼ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د س موالي معیار ۹۰٪).
٥. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یي لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

**٤. املا (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **حوض** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **حوض** دا کلمه ۱



هجا لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **ورځ، ملیحه، فتاح، مېلې، خوشحاله، کرېکټ، لوبې.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **پلار یې ژمنه کړې وه چې مېلې ته به ځو.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **فتاح او ملیحې د کرېکټ لوبه کوله.**
- **ذکرالله نیم سوی کاغذ وکوت.**
- **مهم کاغذونه باید په خوندي ځای کې وساتل شي.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**دوه ویشتمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** ښوونځی **فرعي موضوع:** بې ځایه وېره **توري:** ص، ض

**ټولنیزي- عاطفي زده کړې موخه**

- په سختو او بدو احساساتو باندې برلاسي شي

**د اونۍ د زده کړې موخي**

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې / ص، ض/ غږونو پېژندل.
۲. د (ص، ض) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **صفایي، تګ، بې پروایي، لامبل، حوض، دلاسا** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ص،ض) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ص،ض) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کړکې یا پنسل قلم سره د (ص،ض) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

**د دې اونۍ ځانګړې یادښتونه**

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او پنځه جملې ورته لیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**بې ځایه وېره**

**لومړۍ برخه**

صفیه او صفي الله په دوهم ټولګي کې **سبق** وایي. ښوونکي ورته وویل: **ګرانو** شاګردانو! سبق مو ښه زده کړئ. سبا له تاسو څخه پوښتنې کوم. صفیې او صفي الله بېګاه تر ډېره درس ووایه. صفي الله پوښتنې کولې او صفیې به یې ځوابونه ویل. سهار ښوونځي ته د تګ په وخت کې صفیې ژړل.* صفي الله ورته وویل: ولې ژاړې؟ صفیې وویل: زه ښوونځي ته نه ځم. صفي الله خپلې مور ته ورغی او ورته وېې ویل چې صفیه ښوونځي ته نه ځي.مور یې وویل: زه به ورته ووایم ولاړه به شي.**

**دوهمه برخه**

صفیه او صفي الله په صنف کې وو. ښوونکي له شاګردانو پوښتنې کولې. له صفیې څخه یې پوښتنه وکړه. صفیه چې پورته شوه، **لړزېده**. خبرې یې نه شوای کولای.صفي الله وویل:* معلم صاحب! سبق یې زده دی. **بېګاه** مو یو ځای سبق وایه. ما چې به ځنې پوښتنه کوله، صفیې به له واره ځوابوله. ښوونکي د صفي الله خبرې په غور سره واورېدې. صفي الله وویل: صفیه هسې وارخطا ده. سهار ښوونځي ته هم نه راتله. مور مې دلاسا کړه. بیا راغله. ښوونکي وویل: ښه، ښه. زه وپوهېدم.** ښوونکي صفیه په مینه او مهربانۍ تختې ته ور وبلله. ښوونکي به ورته یوه یوه کلمه ویله. صفیې به هغه پر تخته لیکله او لوستله. صفیه اوس **زړوره** ده. ښوونکي چې کله پوښتنه وکړي، له واره لاس جګوي او د ښوونکي پوښتنه ځوابوي.

**موضوع:** نظافت **توری:** ص

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ص/ غږ پېژندل.
۲. د ( ص) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اوربدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **تګ**(حرکت)، **صفا**(پاک)، **صفايي**(پاکي)
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره


۲۲ اوني ۱ لوست
اِخـ لاص اِخلاص
خـ واص خواص
مخـ صوص مخصوص
را خلاص راخلاص

نظافت

صابرې صادق ته وویل ورور، ښوونځي ته د تګ وخت دی
صادق ورته وویل لږ صبر وکړه، زه مې مخ او لاسونه مینځم
صابرې وویل ما هم مخ او لاسونه په صابون ومینځل صابره
او صادق ښوونځي ته ولاړل ښوونکي شاګردان وکتل د
ډېرو جامې صفا وې نوکان یې لنډ وو د سر وېښتان یې هم
صفا وو ښوونکي ټولو ته آفرین ووایه
صابرې او صادق ته یې چکچکې وکړې
ځکه چې هغوی خپل کتابونه هم پاک
ساتلي وو. ښوونکي وویل له صفایي
سره د انسان زړه خوشحاله وي ثواب
هم لري

۱۳۷

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: صابرې مخ او لاسونه په څه شي مینځلي وو؟
ځواب: په صابون.
۳. پوښتنه: ښوونکي صابرې او صادق ته ولې چک چکې وکړې؟
ځواب: ځکه چې هغوی خپل کتابونه هم پاک ساتلي وو.
٤. ذهني پوښتنه: څنګه کولای شی خپل ځانونه خوشحاله کړئ؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** نظافت او بې ځایه ویره   **توری:** ص

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ص/ غږ پېژندل.
۲. د (ص) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکې د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ص/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**صابون، معصومه، مخلص**)

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **سبق** (درس)، **ګران** (زړه ته رانژدې)، **بې ځایه** ( هسې، وچ په وچه) .
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده‌کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
* تاسې څه فکر کوئ چې ولې به یې ژړل؟




** صفیه به ښوونځي ته تللې وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: صفیه او صفي الله په څووم ټولګي کې وو؟
ځواب: په دویم ټولګي کې.
۳. پوښتنه: صفیې څه وویل؟
ځواب: زه ښوونځي ته نه ځم.
٤. ذهني پوښتنه: ستاسو په نظر، صفیې به ولې ژړل؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالي ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** بې پروايي **توری:** ض

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ض/ غږ پېژندل.
۲. د (ض) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ **بې پروايي** (بې باکي)، **پوښتنې** (احوال اخیستل)، **ساړه** (یخني).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره


۲۲ اونۍ ۳ لوست
ض
بې پروايي
ضيا، مُرتضى او فَياض ملګري دي. هغوی يو ځای لوبې کوي.
ضيا غوښتل چې په سړو اوبو کې ولامبي.
فَياض ورته وويل وروره! منى دى، په سړو اوبو کې مه لامبه
ناروغه به شې. ضيا د هغه خبره ونه منله. په سړو اوبو کې يې
ولمبل. ضيا سبا ته مريض شو.
مُرتضى او فَياض، ضيا خوا ورغي
ونه ليد. پوښتنې ته يې ورغلل
ضيا ورته وويل بې پروايي مې
وکړه. ستاسو خبره مې ونه منله
د حوض په سړو اوبو کې مې
ولمبل. مريض شوم. نور به داسې
بې پروايي نه کوم
۱۲۹

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: څوک سره ملګري دي؟
ځواب: ضیا، مرتضی، او فیاض سره ملګري دي.
۳. پوښتنه: ضیا ولې ناروغ شو؟
ځواب: ځکه چې په سړو اوبو کې یې لمبلي و.
٤. ذهني پوښتنه: ستاسو په نظر، ضیا چې ناروغ و، څه احساس یې کاوه؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** بې پروايي بې ځايه وېره   **توری:** ض



### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /ض/ غږ پېژندل.
۲. د (ض) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ض/ غږ د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تخته ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.
د انځورونو نمونه: (**ضابط، فضيله، فايض**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)

۱. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تخته وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دويم متن تکرار (۱۰ دقيقې)

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په يوازې او جوړه يي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دويمه برخه (۱۰ دقيقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندينيو کلمو په هکله بحث وکړئ: **لړزېدل** (رېږدېدل)، **بېګا** (تېره شپه)، **زړور** (څوک چې نه وېرېږي).
۲. بيا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووايي او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کيسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو نه دغه پوښتنې وکړئ.
* صفي الله به څه ويلي وي؟
** ښوونکي به څه کړي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: صفيه چې پورته شوه، څه ورباندې وشول؟
ځواب: لړزېده، خبرې يې نه شوای کولی.
۳. پوښتنه: ښوونکي د صفي الله خبرې څنګه واورېدې؟
ځواب: په غور سره يې واورېدې.
ذهني پوښتنه: که هسې مو په زړه کې وېره وي، څنګه خپله وېره ختمولی شئ؟

### ۵. د جملو سم ليکل (۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعاليت ولري. هغه جملې ورته وښيئ چې بايد د خپل تمرين په کتاب کې يې تمرين کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو ليکل په همدې **اونۍ کې** تمرين کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ص، ض

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ص، ض/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ص، ض) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اوربدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژنئ.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. ولاړل ۲. ویښتان ۳. سړو ٤. ونه منله**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.




۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او پنځه جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **په سختو او بدو احساساتو باندې د برلاسی کېدو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ف، ن، ح، ذ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ف، ن، ح، ذ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ف، ن، ح، ذ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د س موالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

**۱. د غږونو اوربدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دوهم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوه زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

**٤. املا (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **صفا** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **صـ فا** دا کلمه ۲



هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **صفایي، صادق، نوکان، صابون، پاک، صابر، جامې.**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **لږ صبر وکړه.**
۶. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **د ډېرو جامې صفا وې.**
- **ضیأ د هغه خبره ونه منله.**
- **ضیأ سبا ته مریض شو.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**درويشتمې اونۍ ته کتنه موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** دوستي **توري:** ط، ظ

## د اونۍ د زده کړې موخې

١. د کلمو په پيل، منځ او پای کې / ط، ظ/ غږونو پېژندل.
٢. د (ط، ظ) تورو سم لوستل او ليکل (د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
٣. له نوو تورو سره د ١٦ کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
٥. د **مشق، خطاطي، غوټه، بدل، ژغورل، لحاظ** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)
٧. د دې اونۍ کلمې سمې وليکلای شي.
٨. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
٩. د (ط،ظ) توري له نورو تورو سره سم ترکيب کړي او د کرسي خط پرمخ يې په ښايسته ډول مشق کړي.

**ټولنيزي- عاطفي زده کړې موخه**

- هغه څوک ومني او ملګري ورسره وکړي چې له دوی سره توپير لري

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ط،ظ) تورو ترکيبي او ښايسته ليکل، مشق او تمرين کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقيقې)**

- له خو زده کوونکو څخه د تورو د ترکيبي او ښايسته ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کړکې يا پنسل قلم سره د (ط،ظ) تورو ليکل په کورونو کې تمرين کړي.

## د دې اونۍ ځانګړې يادښتونه

- يوه کلمه لومړی هجا او بيا ترکيب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعاليت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو يو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرين کړي.
- که ځينو زده کوونکو ته نوښتي ليکل سخت وي، کولای شئ، د ځينو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً: د دې اونۍ په کيسه کې مو څه خوښ شول؟ آيا تاسو د کيسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شيانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند يو رسم وباسي او پنځه جملې ورته وليکي. هغوی وځارئ او که يې اړتيا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پيل (۵ دقيقې):** ښوونکی دې د هر درس په پيل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دويمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### دوستي

**لومړی برخه**

يو طاووس او يوه کوتره سره ملګري وو. يوه ورځ دواړه په خوړو پسې روان شول. تر لږ **مزله** وروسته يې يو غږ واورېد:* ودرېږئ، زه هم درسره ځم. طاووس شا ته وکتل، چرګه يې وليده چې په هغوی پسې روانه ده. طاووس چرګې ته وويل: «ته هم غواړې له موږ سره ولاړه شې؟»چرګې وويل:هو. طاووس وويل: * * «ګوره چرګې! زه او کوتره الوځو او ته نه شې الوتلی!» ورځ تېره شوه. سبا سهار، وختي طاووس او کوتره له خپلو کورونو راووتل. چرګه يې وليده چې د دوی د کورونو شاوخوا ګرځي. طاووس چرګې ته وويل: ته زموږ په **خبر** نه يې. زموږ بچيان در څخه **ډارېږي**.

**دوهمه برخه**

چرګې **زارۍ** پيل کړې او ويې ويل: * زه تاسو او ستاسو بچيانو ته زيان نه رسوم. طاووس نه منله. ورځې تېرې شوې. يوه ورځ يو مار راغی. غوښتل يې چې ځان د طاووس او کوترې ځالو ته ورسوي او بچيان يې وخوري.* *

چرګې دا حال وليد او ځان يې په منډه منډه هغه ځای ته ورساوه. له مار سره يې **جګړه** پيل کړ. له اوږدې جګړې وروسته يې مار په منبوکه ټپي کړه د طاووس او کوترې بچيان يې له مرګ څخه **وژغورل**. طاووس او کوتره د دې پېښې په ليدو خجالت شول. طاووس له چرګې څخه مننه وکړه او ويې ويل:

«څومره چې دوستان ډېرېږي، په هماغه اندازه له يو بل سره د مرستې امکانات ډېرېږي.»

**موضوع:** خطاطي **توری:** ط

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د /ط/ غږ پېژندل.
۲. د ( ط) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **خطاطي** (په ښکلي خط لیکل کول)، **موسکی** (په شونډو کې نرۍ خندا)، **ارمان** (دریغه، کاش)
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره


۲۳ اونۍ — ۱ لوست

| | |
|---|---|
| احـ تیاط | احتیاط |
| خـ یاط | خیاط |
| خـ طاط | خطاط |
| ار تـ باط | ارتباط |

ط

خطاطي

طاهرې د طیبې کتابچه ولیده. ویې ویل: طیبه جانې! دا کلمه شریفه چا درته لیکلې ده؟ طیبې وویل: دا ما لیکلې ده. طاهرې وویل: او هو! څومره ښکلی خط دې دی. ښه خطاطه یې. طیبې وویل: منته زه هره ورځ د خط مشق کوم. طاهرې وویل: ارمان چې زما خط ستا د خط غوندې وای.

طیبه موسکې شوه ویې ویل: دا خو آسانه خبره ده. ته هم مشق کوه. زه به خطاطي در زده کړم. طاهرې مننه وکړه او خطاطي یې پیل کړه. څه موده وروسته یې خط ښایسته شو.

۱۳۳

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: طاهرې د چا کتابچه ولیده؟
ځواب: د طیبې.
۳. پوښتنه: طیبې په ښکلي خط څه لیکلي وو؟
ځواب: کلمه شریفه یې لیکلې وه.
۴. ذهني پوښتنه: ملګري مو له تاسو سره په درسونو کې څه ډول مرسته کوي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** خطاطي او دوستي **توري:** ط

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ط/ غږ پېژندل.
۲. د (ط) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ط/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**طوطي، سطل، خطاط**)

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو متن لومړی برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **مزل**(سفر تګ کول)، **شپر** (په شان، ورته)، **ډارېدل** (وېرېدل ترهېدل).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.



* غږ به د چا وي؟
** طاووس به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: طاووس چې شاته وکتل، څه یې ولیدل؟
ځواب: چرګه یې ولیده.
۳. پوښتنه: چرګه چېرته ګرځېده؟
ځواب: د طاووس او کوترې د کور شاوخوا ته.
٤. ذهني پوښتنه: له هغو کسانو سره ملګرتیا چې د تاسو غونډې نه دي، څه ګټې لري؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** بیزوګی **توری:** ظ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ظ/ غږ پېژندل.
۲. د (ظ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **بدله** (عوض)، **لحاظ** (خاطر)، **نیکي** (ښېګڼه).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره


۲۳ اونۍ ۳ لوست

| محفوظ | محـ فو ظ |
| --- | --- |
| لحاظ | لـ حا ظ |
| حفاظ | حـ فا ظ |
| الفاظ | الـ فا ظ |

بیزوګی

ظاهر او محفوظ ځنګله ته تللي وو. د بیزوګي چیغې یې واورېدې. د بیزوګي پښه د ونې په ښاخونو کې بنده وه. ظاهر ولې له ورو خوت ښاخونه یې سره بېل کړل. بیزوګی راکښته شو، منډه یې کړه. محفوظ وویل: هله چې بیزوګي دې څادر وتښتاوه. ظاهر وویل: زما د نېکۍ لحاظ یې هم ونه کړ! وروسته بیزوګی له یوې غوټې سره بېرته راغی. ظاهر وویل: دا خو زما څادر دی. غوټه یې خلاصه کړه. ګوري چې غوزان او جلغوزي دي. محفوظ وویل: عجیبه ده! بیزوګی هم پوهېږي چې د نېکۍ بدله نېکي ده.

۱۳۵

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: بیزوګي ولې چیغې وهلې؟
ځواب: ځکه چې پښه یې په ښاخونو کې بنده وه.
۳. پوښتنه: بیزوګي ولې د ظاهر څادر وتښتاوه؟
ځواب: د دې لپاره چې ظاهر ته په کې غوزان او جلغوزي راوړي.
٤. ذهني پوښتنه: که یو څوک ستاسو لپاره یو ښه کار ترسره کړي، تاسو به څه ورسره کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** بیزوګی او دوستي **توری:** ظ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ظ / غږ پېژندل.
۲. د (ظ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)



**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ظ / غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **ظریف، حفیظه، حفیظ**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **زارۍ**(عذر)، **جګړه** ( جنګ)، (**له** خطره وساتل).
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووايي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.
* چرګې به څه ویلي وي؟
** بیا به څه شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: مار څه غوښتل؟
ځواب: غوښتل یې چې د طاووس او کوترې بچې وخوري.
۳. پوښتنه: چرګې له مار سره څه وکړل؟
ځواب: جګړه وکړه او ټپي یې کړ.
ذهني پوښتنه: تاسې له خپلو ملګرو څخه څه توپیر لرئ؟

**۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ** کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ط،ظ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ط،ظ/غږونو پېژندل.
۲. د ( ط،ظ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور وپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. ولیده ۲. ښایسته ۳. چیغې ٤. راکښته**

**۳. د لوستلو دلومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.
۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او پنځه جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **د خلکو ترمنځ د توپیرونو د ارزښت** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له څینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.



**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونيو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ح، ذ، ص، ض

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د ح، ذ، ص، ض غږونو پېژندل.
۲. د (ح، ذ، ص، ض) تورو لوستل او ليکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معيار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د س موالي معيار ۹۰٪).
٥. د کلمو او جملو سم ليکل (د سموالي معيار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه يې د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورو پېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې وليکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه يې ووايئ.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)

۱. د هجاوو د تمرين د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دويم متن تکرار (۱۰ دقيقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووايئ چې د تېرې ورځې د کيسې په اړه فکر وکړي چې کيسه د څه په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه يي لولي.
۴. زده کوونکي متن يوازې لولي.

### ٤. املا (۱۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته ووايئ چې نن به ځينې کلمې او جملې وليکي.
۲. زده کوونکو ته ووايئ چې درسي کتاب بند او د تمرين کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووايئ چې د **خطاطۍ** کلمه ولولي او هجاوې يې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **خـ طا طي** دا کلمه



۳ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووايئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري يې د تمرين په کتاب کې وليکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **خط، طيبه، مشق، طاهره، ښايسته، خطاط، ارمان.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله يې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **طاهرې د طيبې کتابچه وليده.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.
۷. دا کار د لاندې دريو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **زه هره ورځ د خط مشق کوم.**
- **ظاهر او محفوظ ځنګله ته تللي وو.**
- **هله چې بيزوګي دې خادر وتښتاوه!**

۸. زده کوونکو ته ووايئ چې د تمرين کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نيمګړې جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**خلورویشتمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** د جومات ادبونه **توري:** ع، ې

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې / ع، ې/ غږونو پېژندل.
۲. د (ع، ې) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
۵. د **عالم**، **معلومات**، **مطالعه**، **غوږځول**، **معتدل**، **غله** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
۸. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
۹. د (ع، ې) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرسي خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

### ټولنیزي- عاطفي زده کړې موخه

- له خلکو سره خپل چلند کنټرول کړي او ښه کارونه ترسره کړي

### د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ع، ې) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کړکي یا پنسل قلم سره د(ع، ې) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

### د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او پنځه جملې ورته ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

### د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

#### دجومات ادبونه

**لومړۍ برخه**

جومات د الله (جَلَّ جَلالُهُ) کور دی. خلک د الله (جَلَّ جَلالُهُ) کور پاک او صفا ساتي. په جومات کې پنځه وخته لمونځ او **عبادت** کېږي. ماشومان په کې سبقونه هم وایي. جومات د ټولو لپاره د عبادت، علم او **تعلیم** ځای دی. هر جومات یو مُلا یا مولوي صاحب لري. دوی د دین عالمان دي. خلک ډېر کلونه تعلیم کوي او دیني علم زده کوي چې مولوي شي. ګرانو ماشومانو! کله چې جومات ته ننوځئ، * په **ادب** او سلام ورننوځئ. که خوښه مو وي، زه به درته د عابدې او عبدالله کیسه وکړم.**

**دوهمه برخه**

عابده او عبدالله چې جومات ته ځي،* اول په کور کې اودس کوي. که یې کالي **ککړ** وي، صفا کوي یې. یا یې بدلوي او صفا جامې اغوندي. کله چې جومات ته ورننوځئ، په ادب او سلام ورننو ځي. دوی په جومات کې کاغذونه او نور شیان نه غورځوي. د جومات شاوخوا هم پاکه او **صفا** ساتي. عابده او عبدالله د جومات له مُلا صاحب څخه سبقونه وایي. دوی چې په جومات کې څه زده کړي،** په کور، کلي کې یې خپلو ملګرو او همزولو ته هم وایي. د کلي خلک د عابدې او عبداللّه ډېر **صفت** کوي. دوی اوس په جومات کې ډېر څه زده کړي دي.

**موضوع:** مطالعه **توری:** ع

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ع/ غږ پېژندل.
۲. د ( ع) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **عالم** (پوه)، **معلومات** (د مختلفو شیانو په اړه پوهه)، **مطالعه** (په ځیر لوستل).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.


۲۴ اونۍ — ۱ لوست

ع

| شُـ روع | شُروع |
| --- | --- |
| دِ فاع | دِفاع |
| اِخـ تـِ راع | اِختراع |
| وِ داع | وِداع |

مُطالعه

عابده او عُمر د عبدالله اولادونه دي. دوی به له پلار څخه پوښتنې کولې. پلار یې عالم سړی دی. د دوی پوښتنې به یې ځوابولې. عابدې پلار ته وویل: تا دومره شیان له چا زده کړي دي؟ پلار یې وویل: دا مې له ملګرو زده کړي دي. عُمر وویل: ملګري دې څوک دي؟ پلار یې وویل: ملګري مې ډېر دي. دوی ډېر معلومات لري.
عابدې وویل: نو موږ ته یې هم راوښیه. پلار یې په خندا وویل: زما ملګري کتابونه دي. ډېر کتابونه مې مُطالعه کړي دي. هر علم په کتابونو کې دی.

۱۳۹

۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: عابده او عمر د چا اولادونه دي؟
ځواب: د عبدالله.
۳. پوښتنه: د عابدې او عبدالله د پلار ملګري څوک وو؟
ځواب: کتابونه.
۴. ذهني پوښتنه: که څوک مطالعه کوي، څه باید وکړئ چې مزاحمت ورته ونه شي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** مطالعه او د جومات ادبونه **توری:** ع

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ع/ غږ پېژندل.
۲. د (ع) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي اود /ع/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکي د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**عینکې، مطالعه، شمع**)

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي

**۴. د اورېدو دمتن لومړی برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **عبادت**(لمونځ، روژه، ذکر او حج ته عبادت وایي)، **تعلیم**(زده کړه)، **ادب** (تربیه).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.



* څنګه به ورننوځې؟
** ستاسو په فکر، په کیسه کې به څه راغلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: جومات د چا کور دی؟
ځواب: د الله جل جلاله کور دی.
۳. پوښتنه: په جومات کې څه کېږي؟
ځواب: پنځه وخته لمونځ او عبادت.
٤. ذهني پوښتنه: په جومات کې کوم کارونه باید ونه کړو؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** مېوې **توری:** ي

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ي/ غږ پېژندل.
۲. د (ي) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او د پای غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره ختمېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ **معتدله**(برابره، نه ګرمه نه یخه)، **غَلَه** (جوار، غنم، وربشې، وریجې)، **لېږل** ( استول).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره



۲۳ اونۍ ۳ لوست

| | |
|---|---|
| ګا ز رې | ګازرې |
| شې دې | شېدې |
| تر وې | تروې |
| مو رې | مورې |

مېوې

زموږ هېواد مُعتدله هوا لري. خاوره یې د مېوو او غلو دانو کولو ته جوړه ده. ډول ډول مېوې په کې کېږي. مېوې په دوه ډوله دي: تازه مېوې او وچې مېوې. مڼې، آلوچې، انګور، هندوانې، خټکي، انار، مالټې تازه مېوې دي. بادام، پسته، غوزان، جلغوزي، مُمیلي او نخود وچې مېوې بلل کېږي. ځینې مېوې هم تازه وي، هم وچېږي لکه توت، انګور او خټکي. مېوې بدن ته ګټه لري. تازه مېوې باید پاکې ومینځل شي. د ناپاکو مېوو خوړل انسان مریضوي. د هېواد ځینې مېوې نورو هېوادونو ته لېږل کېږي.

۱۴۱

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: زموږ هېواد څنګه هوا لري؟
ځواب: معتدله هوا لري.
۳. پوښتنه: د ناپاکو مېوو خوړل څه تاوان لري؟
ځواب: د ناپاکو مېوو خوړل انسان مریضوي.
٤. ذهني پوښتنه: که مېوه نامینځلې وي خو زړه مو ورته وشي، څه کوئ؟

**تکرار او کورنی دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** مېوې او د جومات ادبونه **توری:** ي

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د / ي/ غږ پېژندل.
۲. د (ي) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

**يادونه: دا غږ د کلمې په سر کې نه راځي.**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ي/ غږ د کلمې په منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکي د توري بېلې بڼې پر تختې ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۳. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **گازرې، کېله، مڼې**)

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵دقيقې)**

۱. د هجا د تمرين د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يي او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دويم متن تکرار (۱۰ دقيقې)**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په گډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په يوازې او جوړه يي ډول لولي.

**۴. د اورېدلو متن دويمه برخه (۱۰ دقيقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندينيو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ککړ** (ناپاک، ناولی)، **صفا** (پاک)، **صفت** (د چا ښه ويل څوک په ښو يادول).
۲. بيا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووايي او په جملو کې يې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کيسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو نه دغه پوښتنې وکړئ.
* څه به کوي؟



** بيا به څه ويل شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: که د عابدې او عبدالله کالي ککړ وي، څه کوي؟
ځواب: صفا کوي يې يا يې بدلوي.
۳. پوښتنه: عابده او عبدالله له چا څخه سبق وايي؟
ځواب: له مُلا صاحب څخه.
ذهني پوښتنه: د جومات ادبونو ته پام کول، څه ارزښت لري؟

**۵. د جملو سم ليکل (۵ دقيقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعاليت ولري. هغه جملې ورته وښيئ چې بايد د خپل تمرين په کتاب کې يې تمرين کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو ليکل په همدې **اونۍ کې** تمرين کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعاليت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار          **توري:** ع، ي

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ع، ي اغږونو پېژندل.
۲. د (ع، ي) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. پوښتنې ۲. لري ۳. مېوې ٤. ګټه.**

### ۳. د لوستلو دلومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وايي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووايي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او پنځه جملې ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **له نورو سره د ښه چلند کولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له څینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووايي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ص، ض، ط، ظ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د/ص،ض،ط،ظ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ص، ض، ط، ظ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د س موالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یې لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ٤. املا (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **عالم** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **عا لم** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **مطالعه، شمع، علم، عُمَر، معلومات، عابده، کتابونه.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **پلار یې عالم سړی دی.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **هر علم په کتابونو کې وي.**
- **مېوې په دوه ډوله دي.**
- **تازه مېوې باید پاکې ومینځل شي.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.



### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**پنځه ويشتمې اونۍ ته کتنه موضوع:** کورنۍ **فرعي موضوع:** ناروغي **توري:** ح، ذ، ص، ض، ط، ظ، ع، ې

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پيل، منځ او پای کې / ح، ذ، ص، ض، ط، ظ، ع، ې/ غږونو پېژندل.
۲. د (ح، ذ، ص، ض، ط، ظ، ع، ې) تورو سم لوستل او ليکل (د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل. (د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
۵. د **نازاوه، وارخطا، کپه، لوستي، اپنډکس، قضا** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل. (د سموالي معيار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې وليکلای شي.
۸. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
۹. د (ح،ذ،ص،ض،ط،ظ،ع،ې) توري له نورو تورو سره سم ترکيب کړي او د کرسي خط پرمخ يې په ښايسته ډول مشق کړي.

**ټولنيزي- عاطفي زده کړې موخه**

- لاربښوونې په ياد وساتي او عملي يې کړي

### د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ح،ذ،ص،ض،ط،ظ،ع،ې) تورو ترکيبي او ښايسته ليکل، مشق او تمرين کړي.

### ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقيقې)

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکيبي او ښايسته ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکې يا پنسل قلم سره د(ح،ذ،ص،ض،ط،ظ،ع،ې) تورو ليکل په کورونو کې تمرين کړي.

## د دې اونۍ ځانګړې يادداشتونه

- يوه کلمه لومړی هجا او بيا ترکيب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعاليت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو يو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرين کړي.
- که ځينو زده کوونکو ته نوښتي ليکل سخت وي، کولای شئ، د ځينو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کيسه کې مو څه خوښ شول؟ آيا تاسو د کيسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شيانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند يو رسم وباسي او پنځه جملې ورته وليکي. هغوی وڅارئ او که يې اړتيا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پيل (۵ دقيقې):** ښوونکی دې د هر درس په پيل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دويمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### ناروغي

**لومړۍ برخه**

ظريف پر خپل مور او پلار ډېر ګران و. همېشه به يې نازاوه. ظريف يوه ورځ په ژړا کور ته راغی. مور او پلار يې وارخطا شول. پلار يې ترې پوښتنه وکړه: ظريفه زويه! ولې ژاړې؟ ظريف دواړه لاسونه پر خپله ګېډه نيولې وو. له ژړا نه يې خبرې نه شواى کولای. د ظريف مور* ورته د سپېرکيو او باديانو کپه راوړه. ويې ويل: زويه! چې دا **کپه** وخورې، رګ روغ به شې. په دې وخت کې د دوی ګاونډۍ مريمه راغله. مريمه **لوستې** مېرمن وه. د ظريف مور يې له کپې ورکولو منع کړه. مريمې وويل: د ظريف بايد اساسي علاج وشي. خدای مه کړه **اپنډکس** نه وي.**

**دوهمه برخه**

ظريف يې ډاکټر ته يوووړ. ډاکټر وکوت. معلومه شوه چې **خواږه** پرې ښه نه دي لګېدلي. ظريف وويل: په باغ کې مې خام توتان خوړلي وو. ډاکټر ورته نسخه وليکله. د دوا د خوړلو طريقه يې وروښودله. ورته ويې ويل: دوا به پر خپل وخت خورې، قضايي به په کې نه راولې. ظريف همداسې وکړل. دارو به يې په خپل وخت خوړل، هېڅ يې نه **قضا** کول. لږ موده وروسته* ظريف ښه شو. ويل به يې چې بيا به په خوراک څښاک کې **بې پروايي** نه کوي. خامې مېوې به هم نه خوري. کورنۍ يې له ګاونډۍ مريمې ډېره خوشحاله وه. دوی به ويل چې** ښه ګاونډۍ د خدای لوی رحمت دی.

**موضوع:** رُخصَتي **توری:** ح، ذ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ح، ذ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ح، ذ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **حوض** (د اوبو ډنډ)، **آسانه** (سوکه) ، **ترور** (د مور خور، د درناوي په خاطر هرې مشرې ښځې ته هم ترور ویل کېږي).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره


۲۵ اونۍ ۱ لوست

ح ح ح ح
ذ ذ ذ ذ

| حا جي | حاجي | ذَ کي | ذکي |
| --- | --- | --- | --- |
| تس بیح | تسبیح | کا غذ | کاغذ |

رُخصتي

ذاکر په حمید پسې کور ته ورغی. حمید راووت. کاغذ او قلم یې په لاس کې وو. ذاکر وویل: راځه چې لوبې وکړو. بیا به په خوښۍ کې ولاړ شو. حمید وویل: زه خو اوس درس وایم. ماښام به لوبې وکړو. ذاکر وویل: نن خو رُخصتي ده. په رُخصتۍ کې تو چا درس ویلي؟ په دې وخت کې د حمید مور راووتله. دې وویل: په رُخصتیو کې هم لوبې وکړئ، هم درسونه ووایئ. بیا به د مکتب درسونه درته آسانه شي. ذاکر وویل: سمه ده ترور!

۱۲۵

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: ذاکر په چا پسې کورته ورغی؟
ځواب: په حمید پسې.
۳. پوښتنه: د حمید په لاس کې څه وو؟
ځواب: کاغذ او قلم.
٤. ذهني پوښتنه: تاسو ته مور او پلار مو د لوبو او درس ویلو په اړه کومې لارښوونې کړې دي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** رخصتي او ناروغي  **توري:** ص، ض

**د زده کړې موخې**
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ص، ض/ غږونو پېژندل.
۲. د (ص، ض) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو هجا کول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**
۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ص، ض/ غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**
۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه‌یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**صابون، معصومه، مخلص، ضابط، فضیله فایض**)

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**
۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**٤. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**
۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **کپه**(د ورغوي په اندازه دارو)، **لوستی** (با سواد، تعلیم یافته)، **اپنډکس** (یوه وړه کولمه چې کله ګزک کوي او سخت درد لري.)
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**
۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.



* مور به یې څه کړي وي؟
** ستاسو په فکر، په ظریف به څه شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: څوک پر خپل مور او پلار ډېر ګران و؟
ځواب: ظریف.
۳. پوښتنه: چا وویل چې د ظریف اساسي علاج باید وشي؟
ځواب: مریمې.
٤. ذهني پوښتنه: که څوک ناروغ وي، تاسې ورته څه لاربښوونه کوئ؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)**
۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**
۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** د خطاطۍ قلمونه **توري:** ط، ظ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ط، ظ / غږونه پېژندل.
۲. د (ط، ظ ) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. ددې کلمو په هکله بحث وکړئ: **خطاط** (ځوک چې خطاطي کوي او ښکلی خط لري)، **خطاطي** (د ښکلي خط لیکل)، **ښکلی** (شایسته).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره


**د خطاطۍ قلمونه**

ظریف د ظاهر او طاهرې پلار دی. یوه ورځ طاهرې وویل پلاره! زما د خط کتابچه ډکه شوې ده. ظاهر وویل زما هم د خطاطۍ قلمونه په کار دي. پلار یې وویل نو راځئ چې بازار ته ولاړ شو. بازار ته ورسېدل. ظاهر وویل هاغه دی، نظر مُحمّد ماما مې وګوري. نظر مُحمّد ډېر ښه خطاط دی. هغه د خطاطۍ قلمونه ښه پېژني. ظاهر ته یې د خطاطۍ قلمونه واخیستل. طاهرې وویل ماما! زما کتابچه دې هېره شوه؟ نظر مُحمّد وویل نه، نه د خط ښکلې کتابچه به درته واخلم

۱۴۲

متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: ظاهر او طاهره د چا اولاونه دي؟
ځواب: د ظریف.
۳. پوښتنه: طاهرې څه وویل؟
ځواب: زما د خط کتابچه ډکه شوې ده.
٤. ذهني پوښتنه: د دې له پاره چې ښوک خطاطي زده کړي، څه باید وکړي؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توري او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** د خطاطۍ قلمونه او ناروغي **توری:** ع، ې

### د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ع، ې/ غږونو پېژندل.
۲. د (ع، ې) تورو لوستل او لیکل.
۳. له نوو تورو سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)
۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ع، ې/ غږونه د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نمونه: ( **عینکې، مطالعه، شمع، ګازري، کېله، مڼې**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)
۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)
۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)
#### له اورېدلو مخکې
۱. د لاندېنیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **خواړه**(خوراک، غذا)، **بې پروایي** (بې باکي، بې پامي)، **قضا** (پرېښودل، نه کول).
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

#### د اورېدلو په پرمهال
۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.



* وروسته به څه شوي وي؟
**. څه به یې ویل؟

#### له اورېدلو وروسته
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: ظریف ته ډاکټر د دوا د خوړلو په باره کې څه وویل؟
ځواب: دوا به په خپل وخت خورې. قضایي به په کې نه راولې.
۳. پوښتنه: د ظریف دوی کورنۍ د ښه ګاونډي په باره کې څه وویل؟
ځواب: ښه ګاونډی د خدای لوی رحمت دی.
ذهني پوښتنه: د درملو د خوړلو په اړه د ډاکټر لارښوونو ته ولې باید پام وکړو؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)
۱. زده کوونکو ته وواياست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته وواياست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توري او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ح، ذ، ص، ض

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ح، ذ، ص، ض / غږونو پېژندل.
۲. د (ح، ذ، ص، ض) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وايي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. حوض ۲. وایم ۳. دی ٤. ډکه.**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته ووایاست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته ووایاست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته ووایاست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او پنځه جملې ورته ولیکي. ورته ووایاست چې کیسه دې **د لاربښوونو په یاد ساتلو او عملي کولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د اونيو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ط، ظ، ع، ي

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پيل، منځ او پای کې د /ط، ظ، ع، ي/ غږونو پېژندل.
۲. د (ط، ظ، ع، ي) تورو لوستل او ليکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معيار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معيار ۹۰٪).
٥. د کلمو او جملو سم ليکل (د سموالي معيار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو پېژندل، د غږونو او تورو تر منځ اړيکې (۵ دقيقې)

۱. ښوونکې زده کوونکو ته وايي چې اوس به د غږونو او تورو د پېژندلو تمرين تر سره کړو.
۲. ښوونکې زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې مو د تورو چوکاټ ته وګورئ. په چوکاټ کې هره کرښه يوه شمېره لري. زه به لومړی د کرښې شمېره وايم، بيا به د هماغه کرښې د يوه توري غږ وايم. تاسو له هماغه توري حلقه تاو کړئ. ښوونکې له زده کوونکو سره يو مثال تر سره کوي.
۳. ښوونکې زده کوونکو ته وايي چې د تمرين کتابونه مو را واخلئ. ښوونکې په لومړۍ کرښه کې د /ط/ غږ وايي او زده کوونکې د (ط) له توري څخه حلقه تاووي. ښوونکې او زده کوونکې دې همدا کار په نورو کرښو کې د لاندې غږونو لپاره تر سره کړي.
**غږونه:** ۲. /ض/ ۳. /ظ/ ۴. /ح/ ۵. /ض/ ٦. /ذ/ ۷. /ع/ ۸. /ي/
۴. په پای کې ښوونکې د زده کوونکو د تمرين کتابونه ګوري او نومرې يې د دوامداري ارزونې په کتاب کې ثبتوي.

### ۲. د آشنا کلمو پيدا کول (۵ دقيقې)

۱. ښوونکې زده کوونکو ته وايي چې اوس به د آشنا کلمو د پيدا کولو تمرين تر سره کړو.
۲. ښوونکې زده کوونکو ته وايي چې په درسي کتابونو کې مو ځينې انځورونه وينئ. د هر انځور لاندې څلور کلمې ليکل شوې دي. تاسو به د هر انځور لاندې له هغې کلمې څخه حلقه تاووئ چې د هماغه انځور نوم دی. ښوونکې له زده کوونکو سره يو مثال تر سره کوي.
۳. ښوونکې زده کوونکو ته وايي چې د تمرين کتابونه مو را واخلئ او د هر انځور لاندې اړونده کلمه په نښه کړئ.
**سمې کلمې:** ۱. ذره بين ۲. طوطي ۳. سطل ۴. صابون ۵. عينکې ٦. څپلۍ
۴. ښوونکې په ټولګي کې ګرځي او له هغو زده کوونکو سره چې ستونزې لري، مرسته کوي.

### ۳. د لوستلو د دوهم متن تکرار (۱۰ دقيقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کيسې په اړه فکر وکړي چې کيسه د څه په هکله وه؟ يوه يا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکې پخپله متن لولي.
۲. ښوونکې او زده کوونکې متن يوځای لولي.
۳. زده کوونکې متن جوړه يي لولي.
۴. زده کوونکې متن يوازې لولي.

### ٤. املا (۱۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته ووايئ چې نن به ځينې کلمې او جملې وليکي.



۲. زده کوونکو ته ووايئ چې درسي کتاب بند او د تمرين کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووايئ چې د **حميد** کلمه ولولي او هجاوې يې د لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **حـ ـميد** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووايئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري يې د تمرين په کتاب کې وليکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم تر سره کړئ: **لوبې، درس، درسونه، مازديګر، آسانه، حوض، امتحان.**
۵. لومړی جمله په کراره ولولئ او څلور ځله يې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **ذاکر په حميد پسې کور ته ورغی.**
٦. زده کوونکې جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.
۷. دا کار د لاندې دريو جملو لپاره هم تر سره کړي.

- **کاغذ او قلم يې په لاس کې وو.**
- **زما د خط کتابچه ډکه شوې ده.**
- **نظر محمد ډېر ښه خطاط دی.**

**۸.** زده کوونکو ته ووايئ چې د تمرين کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نيمګړې جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**شپږ ویشتمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** بخښنه **توري:** ی، ي

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پیل، منځ او پای کې / ی، ي/ غږونو پېژندل.
۲. د (ی، ي) تورو سم لوستل او لیکل(د سموالي معیار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د **کورنۍ، ځاله، خفه، غصه، پخلا، بخښنه** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
٧. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
٨. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
٩. د (ی،ي) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرښې خط پرمخ یې په ښایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- د خپل منځي او له نورو سره ستونزې هوارې کړي

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ی،ي) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له خو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکې یا پنسل قلم سره د(ی،ي) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

## د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او پنځه جملې ورته ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.
**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### بخښنه

**لومړۍ برخه**

مور یې له هیلۍ څخه پوښتنه وکړه وا نجلۍ! دا څو ورځې دې وینم چې ښوونځي ته یوازې ځې راځې. له هوسۍ سره ولې نه ځې؟ له هوسۍ نه **خفه** شوې یې که څنګه؟ هیلۍ وویل:* مورې! هوسۍ مې نوره نه خوښېږي. مور یې وویل: ولې؟ خیر خو به وي؟ هوسۍ خو ډېره ښه نجلۍ ده او بیا زموږ ګاونډۍ هم ده. هیلۍ وویل: هو، هغه زموږ ګاونډۍ ده. خو تېره اونۍ یې زما قلم واخیست. کله چې مې بېرته څنې وغوښت**، راته په **غصه** شوه. زه یې ډېره خفه کړم.موریې وویل: خیر دی لورې. هغه ستا ملګرې ده. ورسره **پخلا** شه. هیلۍ د ښوونځي خوا ته روانه شوه. په زړه کې یې لا د مور خبرې تېرېدې راتېرېدې چې ښوونځي ته ورسېده.

**دوهمه برخه**

هیلۍ چې ټولګي ته ننوته، ګوري چې یوازې د هوسۍ په خوا کې ځوکۍ تشه ده.* **زړه نا زړه** ورغله او د هوسۍ په خواکې کېښناسته.په همدې ورځ ښوونکي د عفوې او **بښنې** په باره کې خبرې پیل کړې. هغه وویل: ګرانو زده کوونکو هڅه باید وکړو چې **رښتیني** دوستان پیدا کړو. رښتیني دوستان هر وخت په کاربېږي. نو که له چا څخه په څه خبره خفه یئ، ویې بخښئ. که څوک در څخه خفه وي، پخلا یې کړئ. هیلۍ او هوسۍ یو بل ته وکتل** او سره موسکۍ شوې. لاسونه یې سره ورکړل. د رُخصتۍ په وخت کې د هیلۍ مور د هیلۍ لاره څارله. ګوري چې لور یې له هوسۍ سره یو ځای را روانه ده.

**موضوع:** څپلۍ **توری:** ی

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پای کې د / ی/ غږ پېژندل.
۲. د ( ی) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)




**۱. د غږ اوریدل، د توري لوستل او لیکل**
**(۵ دقیقې)**

**یادونه: دا غږ د کلمې په سر کې نه راځي.**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او د / ی/ غږ زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره ختمېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوود کلمو تجزیه او ترکیب**
**(۵ دقیقې)**

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **کورنۍ** (فامیل)، **اونۍ** (هفته)، **بدل** (یو شی چې د بل شي ځای ونیسي).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: هیلۍ چا ته څپلۍ واخیستې؟
ځواب: سپوږمۍ ته.
۳. پوښتنه: دوکاندار څه وکړل؟
ځواب: څپلۍ یې وربدلې کړې.
۴. ذهني پوښتنه: که مو نوي بوټونه اخیستي وي خو په پښو کې مو تنګ وي، څه کوئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** خپلې او بخښنه **توری:** ی

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پای کې د ی/ غږ پېژندل.
۲. د (ی) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي د ی/ غږ د کلمې په پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**خپلې، هیلۍ، هګۍ**)

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکي دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکي او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه يي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **خپه** (مرور)، **غصه** (قهر)، **پخلا** (دلاسه).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله پوښتنې وکړئ.



* هیلۍ به څه ویلي وي؟
** څه به شوي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: هیلۍ ولې له هوسۍ څخه خپه وه؟
ځواب: ځکه چې هوسۍ ورته په غصه شوې وه.
۳. پوښتنه: هیلۍ چې ښوونځي ته تله، په زړه کې یې څه ګرځېدل؟
ځواب: د مور خبرې.
٤. ذهني پوښتنه: د هیلۍ او هوسۍ ترمنځ شخړه څنګه هوارولی شئ؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** د مرغۍ بچي **توری:** ي

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پای کې د / ي/ غږ پېژندل.
۲. د (ي ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ او رېدل، د توري لوستل او لیکل** (۵ دقیقې)

**یادونه: دا غږ د کلمې په سر کې نه راځي.**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او د پای غږ يې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځينې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره ختمېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې لیکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکیب** (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه يې او بیا يې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **خاله** (د مرغانو کورګی)، **پام** (فکر)، **منښوکه** (د مرغانو شونډې)
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره




متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه يې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: څوک ملګري وو؟
ځواب: ولي او سخي.
۳. پوښتنه: پیشو چېرته ګرځېده؟
ځواب: په باغ کې.
۴. ذهني پوښتنه: که یو چا ته خطر وي، څنګه مرسته ورسره کولی شئ؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** د مرغۍ بچي او بخښنه **توری:** ي



### د زده کړې موخې
۱. د کلمې په پای کې د /ي/ غږ پېژندل.
۲. د (ي) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)
۱. ښوونکې د انځورونو په هکله بحث کوي او د /ي/ غږ د کلمې په پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.
د انځورونو نومونه: ( **موچي، پیشو، فیرنی**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب(۵دقیقې)
۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)
۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکې دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)
**له اورېدلو مخکې**
۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **زړه نازړه**، (په نه زړه، نا مطمین) ، **بخښل**(بخشش، عفوه)، **رښتیني**( صادق).
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**
۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.
* هیلۍ به څه کړي وي؟
** هیلۍ او هوسۍ به سره پخلا شوې وي؟

**له اورېدلو وروسته**
۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: هیلۍ د چا په خواکې کښېناسته؟
ځواب: د هوسۍ په خواکې.
۳. پوښتنه: رښتیني دوستان کله په کاربږي؟
ځواب: هر وخت.
ذهني پوښتنه: که موږ چا ته بخښنه وکړو، څه به پېښ شي؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)
۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)
۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ی، ي

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ی، ي اغږونو پېژندل.
۲. د ( ی، ي) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پای کې زده کوونکو ته وروپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وايي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل(۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښيي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. ولاړې ۲. جوړې ۳. ورته ٤. خوشحالي.**

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار(۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وايي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووايي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او پنځه جملې ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **له نورو سره د ستونزو د هوارولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووايي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ط، ظ، ع، ي



## د زده کړې موخې

١. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د /ط، ظ، ع، ي/ غږونو پېژندل.
٢. د (ط، ظ، ع، ي) تورو لوستل او لیکل
٣. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معيار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
٥. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ١. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

١. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
٢. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

### ٢. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

١. د هجاوو د تمرين د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ٣. د لوستلو دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

١. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي متن پخپله لولي.
٢. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
٣. زده کوونکي متن جوړه یي لولي.
٤. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ٤. املا (۱۵ دقیقې)

١. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
٢. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
٣. ورته ووایئ چې د **هیلۍ** کلمه ولولي او هجاوې یې د لاسونو په حرکتونو سره ببلې کړي. **هیـ لۍ** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **اونۍ، کورنۍ، څپلۍ، هوسۍ، سپوږمۍ، خولۍ، کورتۍ.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **هیلۍ او هوسۍ سره ملګرې دي.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
٧. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **هوسۍ ورور ته کورتۍ او خولۍ واخیستې.**
- **ولي او سخي سره ملګري دي.**
- **مرغۍ په منبوکه خپل بچي ونازول.**

٨. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
٩. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

١. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**اوه ويشتمي اونۍ ته کتنه** **موضوع:** تېولنه **فرعي موضوع:** د ماين خطر **توري:** ث، ئ

## د اونۍ د زده کړې موخې

۱. د کلمو په پيل، منځ او پای کې / ث، ئ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ث، ئ) تورو سم لوستل او ليکل (د سموالي معيار ۹۵٪ دی)
۳. له نوو تورو سره د ۱٦ کلمو ترکيب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معيار ۸۰٪ دی)
۵. د **نښه، خطر، ماين، اتفاق، ځانګه، لښته** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کيسو پوښتنو ته سم ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)
۷. د دې اونۍ کلمې سمې وليکلای شي.
۸. د يوه انځور په رسمولو سره د يوې کيسې ليکل او په اړه يې د يوې کلمې/ جملې ليکل.
۹. د (ث، ئ) توري له نورو تورو سره سم ترکيب کړي او د کرسي خط پرمخ يې په ښايسته ډول مشق کړي.

**ټولنيزې- عاطفي زده کړې موخه**

- جزياتو ته پام وکړي چې خپل ځانونه وساتي

**د حسن خط فعاليت (۳۵ دقيقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ث،ئ) تورو ترکيبي او ښايسته ليکل، مشق او تمرين کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقيقې)**

- له څو زده کوونکو څخه د تورو د ترکيبي او ښايسته ليکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکي يا پنسل قلم سره د (ث،ئ) تورو ليکل په کورونو کې تمرين کړي.

## د دې اونۍ ځانګړې يادداشتونه

- يوه کلمه لومړی هجا او بيا ترکيب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعاليت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو يو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرين کړي.
- که ځينو زده کوونکو ته نوښتي ليکل سخت وي، کولای شئ، د ځينو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کيسه کې مو څه خوښ شول؟ آيا تاسو د کيسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شيانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند يو رسم وباسي او پنځه جملې ورته وليکي. هغوی وڅارئ او که يې اړتيا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پيل (۵ دقيقې):** ښوونکی دې د هر درس په پيل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظيم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

## د دويمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن

### د ماين خطر

**لومړی برخه**

عثمان د کوثر کور ته تللی و. مازديګر دواړه په چکر ووتل. د غره په ډډه کې ګرځېدل. د غرنيو ګلانو او بوټو ننداري خوند ورکړی و. يوې **رنګې** کلا ته ورسېدل.* د کلا چارچاپېره **ځوځان** ټوکېدلي وو. د کلا په ديوالونو کې ځای ځای سوري ښکارېدل. د اوسپنې يوه نيمه ټوټه دې خوا ها خوا پرته وه. عثمان وويل: راځه چې دغه اوسپنې راټولې کړو. پر **کباړي** به يې خرڅې کړو. کوثر وويل: پام چې لاس ور نه وړې! عثمان وويل: ولې؟ ښې پيسې به جوړې کړي. کوثر وويل:** په پيسو پسې مه ګرځه. د ماين خطر دی په کې. عثمان وويل: دلته خو د سره رنګ نښې نشته نو ماين به په کې له کومه شي؟

**دوهمه برخه**

کوثر وويل: ها بله ورځ د شپانه مېږه کلا ته ورننوته. يو نا څاپه درز شو. مېږه يې په هوا کړه. عثمان وويل: ښه نو داسې؟ کوثر وويل: هو. يوه ورځ مې راډيو اورېدله. ويل يې: چېرته چې ړنګې کلا ګانې وي، کنډوالې وي يا چې ډېر وابنه او ځوځان وي، هلته به د ماين خطر وي. بله يې دا وويل چې که په يوه ځای کې پخوا **پاټک** او يا مورچه وه، نو کېدای شي هلته ماينونه وي. رښتيا، دا يې هم وويل چې که د اوسپنو ټوټې، د مرميو **نلې** يا د ښاروبو هډوکي چېرته پراته وي،* نو خطري ځای به وي.عثمان وويل: تاخو ډېر شيان زده کړي دي. کوثر وويل: دا بله هم واوره! که په کوم ځای کې د انسان يا ښاروبو د پښو **خاپونه** نه وي، نو هلته به نه ورځې.** ځکه کېدای شي هلته ماين وي.

**موضوع:** ماين **توری:** ث


۲۷ اونۍ ۱ لوست

| | |
|---|---|
| غـ ـيا ث | غياث |
| وا ر ث | وارث |
| ميـ را ث | ميراث |
| ا ثا ث | اثاث |

ماين

ثريا او غياث پر لاره روان وو. ثريا وويل: هغه څه شی دی؟ ثريا ور روانه شوه. غياث ژر له لاسه راونيوه. ويې ويل: پام! پام! ثريا ځای په ځای ودرېده. ويې ويل: غياث لالا! څه خبره ده؟ غياث وويل: هغه سرې نښې ته وينې؟ ثريا وويل: هغه نښې چې په سره رنګ په نښه شوې دي؟ غياث وويل: هو! دا د خطر نښې دي. چېرته چې ماينونه وي، په همدې نښو ښودل کېږي. هغه د پتنګ په شان شی وينې؟ هغه ماين دی. ماين ثريا وويل: وی، ښه شوه چې پوهه دې کړم

۱۵۷

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پيل کې د / ث/ غږ پېژندل.
۲. د ( ث) توري لوستل او ليکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکيبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته يې ځواب ويل (د سموالي معيار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او ليکل (۵ دقيقې)**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ يې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځينې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پيل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تخته ليکي، اشاره ورته کوي او غږ يې وايي.
۴. بيا، زده کوونکي دا توری د تمرين په کتاب کې ليکي او غږ يې وايي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)**

۱. د ترکيب د تمرين د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه يې او بيا يې په يوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو لومړی متن (۲۵ دقيقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **نښه** (نښاني شوی)، **خطر** (څه چې انسان ته زيان اړولی شي)، **ماين** (چاودېدونکی توکی).
۲. بيا زده کوونکو ته ووايئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرين کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کيسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوينه کوي چې کيسه به د څه په هکله وي.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن يوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په جوړه يې او يوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آيا دوی د کيسې په هکله سمه وړاندوينه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: چا وويل هغه څه شی دی؟
ځواب: ثريا.
۳. پوښتنه: غياث څه وويل چې هغه د پتنګ په شان شی څه شی دی؟
ځواب: ويې ويل چې هغه ماين دی، ماين.
٤. ذهني پوښتنه: شاوخوا ته پام کول څنګه کولای شي ستاسو ژوند وژغوري؟

**تکرار او کورنۍ دنده (۵دقيقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکيب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

**موضوع:** ماین او د ماین خطر **توری:** ث

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ث/ غږ پېژندل.
۲. د (ث) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

**۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ث/ غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)**

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**ثریا، عثمان، مثلث**)

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

**۴. د اورېدو متن لومړۍ برخه (۱۰ دقیقې)**

**له اورېدلو مخکې**

۱. د دغو کلمو په هکله بحث وکړئ: **رنګ** (وران)، **کباړي** (څوک چې کاربدلي شیان اخلي)، **څوځان** (داغزیو ډول دی).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.




* کلا به څنګه وي؟
** کوثر به څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: عثمان چېرته تللی و؟
ځواب: د کوثر کور ته.
۳. پوښتنه: د څه شي یوه نیمه ټوټه پرته وه؟
ځواب: د اوسپنې.
٤. ذهني پوښتنه: د ماین له خطره څنګه ځان ژغورلی شئ؟

**۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** اتفاق **توري:** ئ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پای کې د / ئ / غږ پېژندل.
۲. د (ئ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

**یادونه: دا غږ د کلمې په سر کې نه راځي.**

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او د پای غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره ختمېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تخته ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو دویم متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **اتفاق** (یووالی)، **په څېر** (په شان، غوندې)، **ګېډۍ** (دسته).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
۲. پوښتنه: سپین ږیري زامنو ته څه وویل؟
ځواب: ما ته د لښتو یوه ګېډۍ راوړئ؟
۳. پوښتنه: سپین ږیري هر زوی ته ګیډۍ د څه لپاره ورکړه؟
ځواب: د ماتولو لپاره یې ورکړه.
۴. ذهني پوښتنه: ستاسو په نظر، یووالی او اتحاد موږ څه ډول پیاوړي کوي؟




### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** اتفاق او د ماین خطر **توري:** ئ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پای کې د / ئ/ غږ پېژندل.
۲. د (ئ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ئ/ غږ د کلمې په پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نمونه: ( **وخورئ، ولولئ، ولیکئ**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **پاټک** (پوسته)، **نلۍ**(نالی،تولی، پوچک)، **ځاپونه** ( نښې).
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.



* هلته به څه وي؟
**. نور به یې څه ویلي وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: د چا مېړه کلا ته ننوتلې وه؟
ځواب: د شپانه.
۳. پوښتنه: کوثر د ماین په باره کې خبرې له چا اورېدلې وې؟
ځواب: له راډیو.
ذهني پوښتنه: د خطر ځایونه څنګه پېژندلی شئ؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ کې** تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ث، ئ

## د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ث، ئ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ث، ئ ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

### ۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور وپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

### ۲. د خانه خالي جملو لوستل(۵ دقیقې)

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړۍ جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. نښې ۲. ده ۳. ګېډۍ ٤. یوځای.**

### ۳. د لوستلو دلومړي متن تکرار(۱۰ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یي ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یي ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

### ٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووايي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وايي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووايي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او پنځه جملې ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دي **جزیات ته پام کول څنګه کولی شي موږ وژغوري** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووايي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دي په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ع، ي، ی، ې

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ع، ې، ی، ي غږونو پېژندل.
۲. د (ع، ې، ی، ي) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د س موالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

### ۱. د غږونو اوريدل، د تورو لوستل او ليکل (۵ دقيقې)

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه يې د کلمې په پيل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې وليکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه يې ووايئ.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزيه او ترکيب (۵ دقيقې)

۱. د هجاوو د تمرين د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې وليکئ او دا تمرين له زده کوونکو سره يوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه يې او بيا يې په يوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دويم متن تکرار (۱۰ دقيقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه يي لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

### ٤. املا (۱۵ دقيقې)

۱. زده کوونکو ته ووايئ چې نن به ځينې کلمې او جملې وليکي.
۲. زده کوونکو ته ووايئ چې درسي کتاب بند او د تمرين کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووايئ چې د **غياث** کلمه ولولي او هجاوې يې د لاسونو په حرکتونو سره ببلې کړي. **غـ ـياث** دا کلمه ۲



هجاوې لري. زده کوونکو ته ووايئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري يې د تمرين په کتاب کې وليکي.
۴. همدغه کار د لاندې (۷) کلمو لپاره هم ترسره کړئ: **خطر، ثريا، رنګ، کوثر، نښه، مثلث، ماين.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله يې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **ثريا او غياث پر لاره روان وو.**
٦. زده کوونکي جمله د تمرين په کتاب کې ليکي.
۷. دا کار د لاندې دريو جملو لپاره هم ترسره کړي.

- **ثريا ځای په ځای ودرېده.**
- **ورشئ، ما ته د لښتو يوه ګېډۍ راوړئ.**
- **خپلو زامنو ته يې وويل:**

۸. زده کوونکو ته ووايئ چې د تمرين کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقيقې)

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نيمګړې جملې دې د تمرين په کتاب کې وليکي.

د حسن خط فعاليت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقيقې

**اته ویشتمې اونۍ ته کتنه** **موضوع:** ټولنه **فرعي موضوع:** نېکي **توري:** ح، هـ

**د اونۍ د زده کړې موخې**

١. د کلمو په پیل، منځ او پای کې د / ح، هـ/ غږونو پېژندل او په توپیر یې پوهېدل.
٢. د (ح، هـ) تورو سم لوستل او لیکل (د سموالي معیار ۹۵٪ دی).
٣. له نوو تورو سره د ١٦ کلمو ترکیب او هجا کول.
٤. د کلمو او جملو سم لوستل (د سموالي معیار ۸۰٪ دی)
٥. د **چرګوړي، لامبو، ښویېدل،ناهیلي، مښوکه، ښکاري** کلمو پر معناګانو پوهېدل.
٦. د اورېدلو او لوستلو د کیسو پوښتنو ته سم ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)
٧. د دې اونۍ کلمې سمې ولیکلای شي.
٨. د یوه انځور په رسمولو سره د یوې کیسې لیکل او په اړه یې د یوې کلمې/ جملې لیکل.
٩. د (ح،هـ ) توري له نورو تورو سره سم ترکیب کړي او د کرښې خط پرمخ یې په شایسته ډول مشق کړي.

**ټولنیزې- عاطفي زده کړې موخه**

- خپلې وړتیاوې وپېژني او سمه ګټه ترې پورته کړي.

**د حسن خط فعالیت (۳۵ دقیقې)**

ښوونکی دې له زده کوونکو سره د (ح، هـ ) تورو ترکیبي او ښایسته لیکل، مشق او تمرین کړي.

**ارزونه او کورنۍ دنده: (۵ دقیقې)**

- له خو زده کوونکو څخه د تورو د ترکیبي او ښایسته لیکلو په اړه پوښتنه وکړي.
-زده کوونکي دې له کرکې یا پنسل قلم سره د(ح،هـ) تورو لیکل په کورونو کې تمرین کړي.

**د دې اونۍ ځانګړې یادداشتونه**

- یوه کلمه لومړی هجا او بیا ترکیب کړئ، وروسته دې زده کوونکي دا فعالیت ترسره کړي.
- د هرې اونۍ د کلمو یو لست جوړکړئ. زده کوونکي دې د کلمو لست ولولي او هغه دې تمرین کړي.
- که ځینو زده کوونکو ته نوښتي لیکل سخت وي، کولای شئ، د ځینو پوښتنو په کولو سره دوی ته موضوع روښانه کړئ. مثلاً د دې اونۍ په کیسه کې مو څه خوښ شول؟ آیا تاسو د کیسې شخص ته ورته کوم کار کړی دی؟ په خوړو شیانو کې مو څه خوښېږي؟ ستاسو د خوښې لوبه کومه ده؟ زده کوونکي کولای شي په دې اړوند یو رسم وباسي او پنځه جملې ورته ولیکي. هغوی وڅارئ او که یې اړتیا وه،، مرسته ورسره وکړئ.
- د چهار شنبې او پنج شنبې په ورځو د ارزونې له فورم سره سم پنځه پنځه زده کوونکي وارزوئ.

**د درس پیل (۵ دقیقې):** ښوونکی دې د هر درس په پیل کې دغه مقدماتي کارونه وکړي.
- سلام، روغبړ، د ټولګي تنظیم، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر درس ارزونه او د انګېزې رامنځته کول.

**د دویمې او څلورمې ورځې د اورېدلو متن**

**نېکي**

**لومړۍ برخه**

حفیظه او محفوظ د خپل ماما کره تللي وو. د جمعې ورځ وه. ټول په کور کې وو. حفیظه او محفوظ د ماما له لور عابدې سره باغ ته ولاړل. په باغ کې د یوه حوض پر غاړه کښېناستل. په دې وخت کې یو مېږی راغی او حوض ته ورکښته شو چې اوبه وڅښي.* پښه یې **وښویېده** او په اوبو کې ولوید. نژدې و چې **ډوب** شي. خو ژوند **خوږ** دی. وارخطا وارخطا یې لاسونه او پښې غورځولې.**

**دوهمه برخه**

پاس په ونه کې کوتره ناسته وه. پر مېږي یې زړه وسوځید. د ونې یوه پاڼه یې په **مښوکه** پرې کړه او د مېږي په مخه کې یې ور وغورځوله.* مېږی پاڼې ته ورپورته شو او ځان یې د ډنډ غاړې ته ورساوه. بله ورځ یو **ښکاري** د ټوپک خوله په ونه کې ناستې کوترې ته ونیوه. غوښتل یې چې ډز پرې وکړي او ویې ولي.** مېږي ځان ور ور ساوه او تر ډز مخکې یې ښکاري پر پښه وچیچه. له ښکاري څخه نخښه **خطا** شوه او کوتره روغه رمټه والوته.

**موضوع:** هیلۍ او چرګوړی **توری:** ح

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل کې د / ح/ غږ پېژندل.
۲. د (ح) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووایي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
۳. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړۍ دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د لومړي متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

۱. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ: **چرګوړی** (د چرګې بچی)، **حوض** (ډنډ)، **لامبو** (د اوبو پر سر خوځېدل).
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.



۲۸ اونۍ ۱ لوست

ح

| | |
|---|---|
| اِص لاح | اصلاح |
| فَ لاح | فلاح |
| نِ کاح | نکاح |
| فَ تاح | فتاح |

د هیلۍ بچي او چرګوړی

تړۍ باران ورېده. چرګوړی د حوض پر غاړه پاتې و. ژړل یې. د هیلۍ بچي ورغی. ورته وې یې ویل: ولې ژاړې؟ چرګوړي وویل: زموږ کور د حوض پورې غاړه دی. په حوض نه شم ورګډېدای. د هیلۍ بچي یې اوښکې پاکې کړې. ورته وې یې ویل: [illegible] بیا دې له حوض څخه پورې باسم. چرګوړي وخندل. د هیلۍ بچي ورته وویل: اوس نو زما پر شا کېنه. چرګوړی شا ته ور توپ کړ. د هیلۍ بچي په حوض کې لامبو ووهله. چرګوړی یې له حوض څخه پورې ایست. چرګوړی خوشحاله شو او مننه یې ترې وکړه.

۱۲۲

۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یې او یوازې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: څه شی د حوض پر غاړه پاتې و؟
ځواب: چرګوړی د حوض پر غاړه پاتې و.
۳. پوښتنه: د چرګوړي اوښکې چا پاکې کړې؟
ځواب: د هیلۍ بچي.
۴. ذهني پوښتنه: تاسې په کومو کارونو کې تکړه یاست؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع: نیکي توری: ح**

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ح / غږ پېژندل.
۲. د (ح) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / ح / غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.
د انځورونو نومونه: (**حوض، محراب، تسبیح**)

### ۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي دې متن پخپله ولولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب لحن (غږ) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په جوړه یي او یوازې ډول لولي.

### ۴. د اورېدو متن لومړی برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. دلاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ: **ښوېېدل** (په ښوی ځای کې د پښې ښوېدل)، **ډوب** (غرق)، **خوږ** (شیرین)،
۲. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو پر مهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې د کیسې په هکله دغه پوښتنې وکړئ.
*. بیا به څه پېښ شوي وي؟




**. د کیسې په دوهمه برخه کې به څه وشي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: مېږی د څه لپاره حوض ته ورکښته شو؟
ځواب: چې اوبه وڅښي.
۳. پوښتنه: مېږی چېرې ولوېد؟
ځواب: په حوض کې.
٤. ذهني پوښتنه: تاسو کوم داسې کارونه کړي دي چې نورو ته مو ګټه رسولې وي یا مو نور خوشحاله کړي وي؟

### ۵. د کلمو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه کلمې ورته وښیئ چې باید د تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې کلمو لیکل په همدې اونۍ کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. زده کوونکي دې په شپږمه ورځ د املا د فعالیت لپاره چمتووالی ونیسي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** هیله او اُمید **توری:** هـ

### د زده کړې موخې

١. د کلمې په پیل کې د / هـ / غږ پېژندل.
٢. د (هـ) توري لوستل او لیکل.
٣. له نوي توري سره د ۴ کلمو ترکیبول.
٤. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ١. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

١. د انځور په هکله بحث وکړئ او لومړی غږ یې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
٢. زده کوونکي دې ځینې کلمې ووايي چې په همدې غږ سره پیل کېږي.
٣. ښوونکی توری پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وايي.
۴. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وايي.

### ٢. په هجاوود کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)

١. د ترکیب د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
٢. زده کوونکي نورې کلمې په جوړه یې او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ٣. د لوستلو د ویم متن (۲۵ دقیقې)

**له لوستلو مخکې**

١. د دې کلمو په هکله بحث وکړئ **خیر** (ښه، ښېګڼه)، **ناهیلي** (زړه ماتی)، **روښانه** (رڼه).
٢. بیا زده کوونکو ته ووایئ چې د دې کلمو معنا او په جملو کې استعمال تمرین کړي.
٣. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
٤. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د لوستلو پر مهال**

١. زده کوونکي متن پخپله لولي.
٢. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره


۲۸ اونۍ — ۳ لوست

| | |
|---|---|
| هـ وا د | هېواد |
| هـ ند وا نۍ | هندوانۍ |
| هـ وا | هوا |
| ښـ هار | ښهار |

هـ

هیله او اُمید

د خېبر له ژونده زړه تور و. یوه شپه یې په ژړا وویل: پښه مې ماین وهلې ده. نه مې ځان ته خیر رسېږي او نه نورو ته. پلار یې دوې شمعې راوړې. یوه جوړه وه، بله ماته. دواړه یې ولګولې. دواړو یې یو ډول رڼا کوله. پلار یې وویل: وګوره، ماته شمع هم پوره رڼا کولی شي. ناهیلی کېږه مه. که ته تعلیم وکړې، ځان او خلکو ته به دې خیر ورسېږي. خېبر د پلار لاسونه ښکل کړل، وېې ویل: ډېره مننه. د ژوند روښانه لاره دې راوښوده.

۱۲۵

متن زده کوونکو ته ولولي.
٣. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
٤. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یې ډول لولي.

**له لوستلو وروسته**

١. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که څنګه؟ هو/ نه
٢. پوښتنه: له ژونده د چا زړه تور و؟
ځواب: د خېبر.
٣. پوښتنه: ماتې شمعې څنګه رڼا کوله؟
ځواب: لکه د روغې شمعې.
٤. ذهني پوښتنه: ستاسو په نظر که څوک په لاسونو یا پښو معیوب وي، کوم کارونه کولی شي چې ځان او خلکو ته یې ګټه ورسېږي؟

### تکرار او کورنۍ دنده (۵دقیقې)

١. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
٢. **کورنۍ دنده**: د ترکیب کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. توری او کلمې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

**موضوع:** هیله او اُمید او نیکي **توری:** هـ

### د زده کړې موخې

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / هـ / غږ پېژندل.
۲. د (هـ) توري لوستل او لیکل.
۳. له نوي توري سره د ۴ کلمو هجا کول.
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته یې ځواب ویل (د سموالي معیار ۸۰٪)

### ۱. د غږ اورېدل، د توري لوستل او لیکل (۵ دقیقې)

۱. ښوونکي د انځورونو په هکله بحث کوي او د / هـ / غږ د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ورپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږ یې وایي.
۳. بیا، زده کوونکي دا توری د تمرین په کتاب کې لیکي او غږ یې وایي.
د انځورونو نومونه: ( **هندوانه**، **بهي**، **منه**)

### ۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵دقیقې)

۱. د هجا د تمرین د چوکاټ لومړی دوې کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړېیي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

### ۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)

۱. زده کوونکي متن پخپله لولي.
۲. ښوونکی دې په مناسب غږ (لحن) او حرکتونو سره متن زده کوونکو ته ولولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای په ګډه سره لولي.
۴. زده کوونکي متن په یوازې او جوړه یي ډول لولي.

### ۴. د اورېدلو د متن دویمه برخه (۱۰ دقیقې)

**له اورېدلو مخکې**

۱. د لاندینیو کلمو په هکله بحث وکړئ **منبوکه** (د مرغانو شونډې)، **ښکاري** (څوک چې ښکار کوي)، **خطا** (تېر وتل)
۲. بیا له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د دې کلمو معنا ووایي او په جملو کې یې استعمال کړي.
۳. له زده کوونکو سره د کیسې د انځور او عنوان په هکله بحث وکړئ.
۴. زده کوونکي وړاندوینه کوي چې کیسه به د څه په هکله وي؟

**د اورېدلو په پرمهال**

۱- کیسه په مناسب غږ او حرکتونو سره دوه ځلې ولولئ.
۲. د لوستلو په اوږدو کې له زده کوونکو څخه دغه پوښتنې وکړئ.
* مبرې به څه کړي وي؟



** کوتره به یې ویشتې وي؟

**له اورېدلو وروسته**

۱. له زده کوونکو پوښتنه وکړئ چې آیا دوی د کیسې په هکله سمه وړاندوینه کړې ده او که نه؟ هو/نه
۲. پوښتنه: د کیسې عنوان څه و؟
ځواب: نیکي.
۳. پوښتنه: د ښکاري نښه ولې خطا شوه؟
ځواب: ځکه چې مبرې وچیچه.
ذهني پوښتنه: تاسو د کومو مهارتونو/وړتیاوو له لارې یو له بل سره مرسته کولای شئ؟

### ۵. د جملو سم لیکل (۵ دقیقې)

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د اونۍ په پای کې به دوی د املا فعالیت ولري. هغه جملې ورته وښیئ چې باید د خپل تمرین په کتاب کې یې تمرین کړي.
۲. دا کلمې زده کوونکو ته ولولئ. ورته ووایاست چې په کور کې به د دې جملو لیکل په همدې **اونۍ** کې تمرین کړي.

### تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)

۱. توری او غږ له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده**: د هجا د فعالیت کلمې دې په کور کې ۳ ځلې ولولي. توری او جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

**موضوع:** د اونۍ تکرار **توري:** ح، هـ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د ح/ هـ/ غږونو پېژندل.
۲. د ( ح، هـ ) تورو لوستل او لیکل.
۳. د خانه خالي جملو سم لوستل. (د سموالي معیار ۹۵٪)
۴. د متن سم لوستل او پوښتنو ته ځواب ویل(د سموالي معیار ۸۰٪)
۵. د یوې لنډې کیسې لیکل (رسمول، د کلمو او جملو لیکل.)

**۱. د غږونو اورېدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی د انځورونو په هکله بحث کوي او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته ور وپېژني.
۲. ښوونکی د توري بڼې پر تختې لیکي، اشاره ورته کوي او غږونه یې وایي.

**۲. د خانه خالي جملو لوستل(۵ دقیقې)**

۱. ښوونکی زده کوونکو ته ښیي چې لومړی جمله څرنګه ولولي.
۲. ښوونکی زده‌کوونکو ته وخت ورکوي چې نورې جملې پخپله ولولي او بیا د ځواب په هکله ورسره بحث کوي.
ځوابونه: **۱. ورغی ۲. حوض ۳.جوړه ۴. زړنا.**

**۳. د لوستلو د لومړي متن تکرار(۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې د تېرې ورځې د کیسې په باره کې فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده‌کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکی په نمونه یې ډول متن زده کوونکو ته لولي.
۳. ښوونکی او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۴. زده کوونکي یې په جوړه یې ډول لولي.
۵. زده کوونکي یې پخپله لولي.

**٤. نوښتي لیکل (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به تاسې خپلې کیسې جوړوئ.



۲. زده کوونکو ته وواياست چې په خپلو درسي کتابونو کې دوو انځورونو ته وګوري او پوښتنه ورڅخه وکړئ چې د اړوند کیسو په اړه یې څه په یاد پاتې دي.
۳. دوو یا دریو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې په یاد پاتې دي، نورو ته یې ووایي.
۴. زده کوونکو ته اجازه ورکړئ، هغه څه یې چې د کیسې په اړه خوښېږي خپلو ټولګیوالو ته و وایي او له هغوی څخه پوښتنه وکړئ چې که د کیسې کرکټر وای، څه به یې کړي وای؟
۵. دوو زده کوونکو ته اجازه ورکړئ چې خپل ځوابونه په څلورو جملو کې نورو ته ووایي او پر تختې یې ولیکي.
٦. زده کوونکو ته وواياست چې اوس به دوی د خپلو کیسو په اړه لیکل کوي. ورته وواياست چې د خپلو کیسو په اړه یو انځور رسم کړي او پنځه جملې ورته ولیکي. ورته وواياست چې کیسه دې **له نورو سره د مرستې په خاطر د خپلو ورتیاوو د کارولو** په اړه ولیکي.
۷. کله چې زده کوونکي انځور رسموي او په اړه یې لیکل کوي، تاسو په ټولګي کې وګرځئ او که اړتیا وه مرسته ورسره وکړئ.
۸. څو دقیقې وروسته له ځینو زده کوونکو څخه وغواړئ چې خپلې کیسې نورو ته ووایي.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** خانه خالي جملې دې په کور کې ولولي. د متنونو انځورونو ته دې وګوري، په اړه دې یې څو کلمې او جملې ولیکي.

**موضوع:** د تېرو اونیو تکرار او متداومه ارزونه **توري:** ی، ي، ٿ، ئ

**د زده کړې موخې**

۱. د کلمې په پیل، منځ او پای کې د / ی، ي، ٿ، ئ/ غږونو پېژندل.
۲. د (ی، ي، ٿ، ئ) تورو لوستل او لیکل
۳. د کلمو او جملو لوستل (د سموالي معیار ۹۵٪).
٤. د متن سم لوستل (د سموالي معیار ۹۰٪).
۵. د کلمو او جملو سم لیکل (د سموالي معیار ۹۰٪).

**۱. د غږونو اوربدل، د تورو لوستل او لیکل (۵ دقیقې)**

۱. د انځورونو په هکله بحث وکړئ او اړونده غږونه یې د کلمې په پیل، منځ او پای کې زده کوونکو ته وروپېژنئ.
۲. د توري بڼې پر تختې ولیکئ، ورته اشاره وکړئ او غږونه یې ووایئ.

**۲. په هجاوو د کلمو تجزیه او ترکیب (۵ دقیقې)**

۱. د هجاوو د تمرین د چوکاټ دوې لومړۍ کلمې پر تختې ولیکئ او دا تمرین له زده کوونکو سره یوځای ترسره کړئ.
۲. زده کوونکي دا کلمې په جوړه یي او بیا یې په یوازې ډول لولي.

**۳. د لوستلو د دویم متن تکرار (۱۰ دقیقې)**

**له لوستلو مخکې**

۱. زده کوونکو ته ووایاست چې د تېرې ورځې د کیسې په اړه فکر وکړي چې کیسه د څه په هکله وه؟ یوه یا دوو زده کوونکو ته د ځواب ورکولو اجازه ورکړئ.

**د لوستلو پر مهال**

۱. زده کوونکي پخپله متن لولي.
۲. ښوونکي او زده کوونکي متن یوځای لولي.
۳. زده کوونکي متن جوړه یي لولي.
۴. زده کوونکي متن یوازې لولي.

**٤. املا (۱۵ دقیقې)**

۱. زده کوونکو ته ووایئ چې نن به ځینې کلمې او جملې ولیکي.
۲. زده کوونکو ته ووایئ چې درسي کتاب بند او د تمرین کتاب خلاص کړي.
۳. ورته ووایئ چې د **هیلۍ** کلمه ولولي او هجاوې یې د



لاسونو په حرکتونو سره بېلې کړي. **هیـ ـلۍ** دا کلمه ۲ هجاوې لري. زده کوونکو ته ووایئ چې د کلمې د هرې هجا په هکله فکر وکړي او توري یې د تمرین په کتاب کې ولیکي.
۴. همدغه کار د لاندې(۷)کلمو لپاره هم ترسره کړئ:
**چرګوړی، باران، توپ، ژړل، غاړه، حوض، لامبو.**
۵. لومړۍ جمله په کراره ولولئ او څلور ځله یې په کراره تکرار کړئ. جمله دا ده: **چرګوړی د حوض پر غاړه پاتې و.**
۶. زده کوونکي جمله د تمرین په کتاب کې لیکي.
۷. دا کار د لاندې دریو جملو لپاره هم ترسره کړي.
- **د هیلۍ بچي په حوض کې لامبو ووهله.**
- **پلار یې دوې شمعې راوړې.**
- **ماته شمع هم پوره رڼا کولی شي.**

۸. زده کوونکو ته ووایئ چې د تمرین کتاب دې د کتلو لپاره راوړي. د هغوی املا وګورئ او نومرې ورکړئ.
۹. د زده کوونکو نومرې د دوامدارې ارزونې په کتاب کې ثبت کړئ.

**تکرار او کورنۍ دنده (۵ دقیقې)**

۱. توري او غږونه له زده کوونکو سره تکرار کړئ.
۲. **کورنۍ دنده:** د هجا کلمې دې ۳ ځلې په کور کې ولولي. کلمې او نیمګړې جملې دې د تمرین په کتاب کې ولیکي.

د حسن خط فعالیت، ارزونه او کورنۍ دنده (۴۰) دقیقې

# لغت نامه

| اونۍ | لغت | معناوې | اونۍ | لغت | معناوې |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ اونۍ | **امام** | څوک چې لمونځ ورکوي | ٦ اونۍ | **قلات** | د زابل د ولایت مرکز دی |
| // | **عبادت** | لمونځ، روژه او نورې چارې چې د خدای له پاره ترسره کېږي | // | **سخاوت** | بخشش |
| // | **کمال** | نوم دی، هنر، کاملوالی | // | **روغتون** | شفاخانه، د ناروغانو د درملنې ځای |
| // | **مؤمنان** | څوک چې په خدای ایمان لري | ۷ اونۍ | **کوپ** | څوک چې په ملا کړوپ وي |
| // | **ټپي** | زخمي | // | **گروپ** | هغه څراغ چې په برق لگېږي |
| // | **امسا** | لکړه | // | **ازار** | بد رسول، ځورول، زیان، ښېرا |
| // | **کمال** | کسب او هنر | // | **کپ** | هغه ډالۍ چې د سیالۍ گټونکي ته ورکول کېږي |
| // | **درمل** | دوا | // | **غوړپ** | گوټ، د څښاک هغه اندازه چې په یو وار له ستوني تېرېږي |
| // | **نانځکې** | گوډۍ، ناوکۍ | ۸ اونۍ | **ایمان** | باور، عقیده |
| // | **علاج** | چاره، تداوي | // | **کاروان** | بهیر،قافله،د ډېرو موټرانو یا اوښانو یو ځای سره تلل |
| // | **ناروغ** | مریض | ۹ اونۍ | **کوهاټ** | په پښتونخوا کې د یو ځای نوم دی |
| // | **جلال** | نوم دی، برم او پرتم | // | **پیلوټ** | هغه څوک چې طیاره چلوي |
| // | **جمال** | نوم دی، ښکلی، ښایسته | // | **واټ** | سړک |
| ۲ اونۍ | **پیغمبر** | پیغام او خبررسوونکی | // | **پلتۍ** | پرلت، چهارزانو |
| // | **حضرت** | یوه کلمه ده چې د درناوي او احترام په خاطر د لویانو له نوم سره راځي | // | **پلی** | پیاده، په پښو مزل کول |
| // | **مینه** | محبت | // | **ویجاړه** | خراب کړ شوی |
| // | **فرق** | توپیر | ۱۰ اونۍ | **چابک** | تېز، چټک |
| ۳ اونۍ | **امان** | ساتل شوی، خوندي | // | **پام** | توجه، ځیر کېدل |
| // | **راستون** | بیرته راغلی | ۱۱ اونۍ | **مشوره** | سلا، مصلحت |
| // | **درملتون** | دواخانه | // | **وگړي** | خلک |
| // | **دارو** | دوا | // | **پراخ** | وسیع، لوی او هوار ځای |
| // | **صبر** | زغم، حوصله | // | **ناجو** | د نبتر په شان ونه ده |
| ۴ اونۍ | **ششنېدل** | د آس آواز | // | **ړومبی** | لومړی، اول |
| // | **الماس** | یو قیمتي کاڼی | ۱۲ اونۍ | **داش** | د خښتو د پخولو ځای، بټۍ |
| // | **صفا** | پاک | // | **مشتریان** | اخیستونکي |
| // | **زیان** | تاوان | // | **شمس** | د نارینه نوم دی، په عربي ژبه لمر ته وایي |
| // | **روغتیا** | سلامتي | // | **بکتاش** | د قوم مشر، نارینه نوم |
| ۵ اونۍ | **اخرین** | وروستی | // | **شمله** | د پگړۍ هغه برخه چې پگړۍ له پاسه هسکه ولاړه وي |
| // | **په اندازه** | برابر | // | **طاق ظفر** | په پغمان کې یوه تاریخي دروازه ده |
| ٦ اونۍ | **اوړي** | دوبی | // | **غفار** | ښښونکی، او نارینه نوم دی |
| // | **اونۍ** | هفته | // | **خپلواکي** | آزادي |
| // | **تلاوت** | **د قرآن شریف لوستل** | // | **بیرغ** | توغ، جنډه |

| اونۍ | لغت | معناوې | اونۍ | لغت | معناوې |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱۲ | **زرغون** | شین، د پاڼې رنګ | **۱۸ اونۍ** | **شفق** | کله چې لمر راخېژي، د اسمان په څنډوکې سره روښنايي |
| // | **درناوی** | احترام | **۱۹ اونۍ** | **معارف** | پوهنه |
| // | **کتغ** | پاخه شوي خواړه | // | **اشرف** | عزتمن، شرف والا |
| ۱۳ | **زیارکښ** | زحمت کش | // | **نداف** | هغه څوک چې پنبه یا پخته او وړی تکوي. |
| // | **بزګر** | دهقان | // | **شرف** | عزت |
| // | **کرونده** | کښت | // | **ځناور** | حیوان لکه زمری، پړانګ او نور |
| // | **سویچ** | بټن | // | **ارزښت** | بیه، قیمت |
| // | **مالوچ** | پخته | // | **ترکاڼ** | نجار |
| // | **شیبه** | لحظه | // | **ځدراڼ** | یو قوم دی |
| ۱۴ | **برګ** | تور او سپین، څو رنګه | // | **ګل بڼ** | د ګلانو باغ |
| // | **وردګ** | د یوه قوم او یو ولایت نوم دی | // | **شکوڼ** | یو ډول حیوان دی |
| // | **پالنګ** | د خوب کټ | **۲۰** | **کراچۍ** | لاسي ګاډی |
| // | **لونګ** | د بوټي نوم دی، ښه بوی لري | // | **بڼوال** | باغوان |
| // | **ججوغه** | د چرګ یا کوکوښ د سرتاج | **۲۱** | **اصلاح** | سمول |
| // | **ښاپېرۍ** | پري | // | **جراح** | هغه ډاکټر چې عملیاتونه کوي |
| // | **بزرګ** | لوی، مشر، ولي | // | **ذره بین** | هغه ښیښه چې شیان غټ ښیي |
| // | **شغله** | پلوشه، وړانګه | // | **محراب** | د جومات هغه ځای چې ملا په کې درېږي |
| ۱۶ | **ګهیځ** | سهار | **۲۲** | **اخلاص** | ښه نیت |
| ۱۷ | **بلوڅ** | یو قوم دی | // | **خواص** | خاصیتونه، ځانګړنې |
| // | **بوخ** | جګ جګ ولاړ لکه د آس غوږونه چې هسک ولاړ وي. | // | **مخصوص** | خاص، ځانګړی |
| // | **څملاست** | پرېووت | // | **ریاض** | د سعودي عربستان پایتخت |
| // | **څاروي** | حیوانات | // | **ضرر** | زیان، تاوان |
| // | **غوځ** | پرې | // | **مرض** | ناروغي، ناجوړي |
| // | **پاڅېدل** | پورته کېدل | **۲۳ اونۍ** | **احتیاط** | پام کول |
| // | **بریښنا** | برق | // | **الفاظ** | غږونه او کلمې چې له خولې څخه راوځي. |
| // | **دړه** | تخته، د لرګي هواره ټوټه | // | **ارتباط** | اړیکي، چا سره تګ را تګ یا خبرې کول |
| // | **هوډمن** | څوک چې کلکه اراده لري | // | **حفاظ** | حافظان |
| // | **ډالۍ** | سوغات، تحفه | // | **مظلوم** | څوک چې ظلم ورباندې شوی دی |
| // | **ډېوه** | څراغ | **۲۴ اونۍ** | **دفاع** | ساتنه |
| // | **کڅوړه** | خلطه، پاکټ | // | **شروع** | پیل |
| ۱۸ | **ورمېږ** | غاړه، څټ | // | **وداع** | خدای په اماني |
| // | **صادق** | رښتیاویونکی | // | **اختراع** | د یوه نوي شي جوړول |
| // | **طارق** | په لاره تلونکی | // | **تروي** | شړومبې، پی |
| // | **فاروق** | فرق یا توپیر کوونکی | **۲۵** | **تصویر** | عکس، انځور |
| // | **تقسیم** | **وېش** | **۲۶** | **بېړۍ** | کښتۍ |
| // | **د بابربڼ** | په کابل کې یو باغ دی | // | **اوړی** | د غاړې ګاڼه |

| اونۍ | لغت | معناوې | اونۍ | لغت | معناوې |
|---|---|---|---|---|---|
| ۲٦ | ظاهر | معلوم، ښکاره | | | |
| // | شړۍ | له وړیو څخه جوړ شوی بالاپوش | | | |
| // | هیلۍ | مرغاوی | | | |
| // | ګړي | منګي | | | |
| // | دوستي | ملګرتیا | | | |
| // | ټیکري | پړوني | | | |
| ۲۷ | مثلث | درې خطونه چې نوک په نوک سره یو ځای شوي وي. | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |
| | | | | | |